دخوشال خان ختک، دمړینې
دریې سوم تلین په مناسبت د زیري
دجریدې سوغات

# سوات نامه

د

# خوشال خان ختک

۱۳۵۸

# سوات نامه

# د خوشال خان خټک

د پوهاند عبدالحی حبیبي
د سریزې او څرګندونو سره

د
بسم الله حقمل،

مجاور احمد هومند، نصرالله ناصر او لطیف په اهتمام

د افغانستان د علومو اکاډیمي د ژبو او ادبیاتو انستیتوت

۱۳۵۸



د توري او قلم خاوند خوشحال خان خټک

# دخوشحال خان ختټك

## سواتنامه

۱ـ سر یزه : د عبدالحی حبیبی .
۲ـ سواتنامه : متن دخوشحال خان ختټك .

یادونه : دمتن په حاشیو کې (سر) دتاریخ مرصع چاپ شوې نسخې ته اشاره ده ،چې دښاغلي دوست محمد کامل په اهتمام په ۱۹۷٤م کال په پېښور کې، یونیورسټی بک ایجنسي چاپ کړې ده .

(ار) دارمغان خوشحال په نامه دده داشعارو هغه مجموعه ده ،چې دپېښور دغې ایجنسی په ۱۹٦۳م کال دښاغلي سید رسول رسا په اهتمام چاپ کړې ده :

دغه دواړه کتابونه دسواتنامې دمتن په تصحیح اوتحشیه کې زما تر نظر لاندې وو (حبیبی) ۲۳-٦-۵۸

# سریزه

## ۱ــ سوات

د هندوکش دجګو او په واورو پټو څوکو او سړدړو سلسله دافغانستان په زړه کې تېره شوې او د شمال ختيځ پلو ته، د پښتونخوا د شمالي غرونو هغه سيمې او لوړې ژورې جوړوي، چې د قره قروم او دردستان له ښکلو درو سره نښلي. او له دغو غرو څخه څپاند سيندونه لکه کابل، کونړ، پنج کوړه، اباسين، پنجشير، غوربند او نور راوزي، چې په ختيځه شمالي څنډه کې د پښتونخوا ختيځ شمالي برید ته د يکهلي د سيمې د يوه اړخ د کاشان له درې څخه د کونار روڼ او څپاند سيند راوزي، او داګرده ژوند بخښونکي رودونه، له يوازې د پښتونخوا شمالي برخې بلکه د پنجاب سيمې هم خړوبوي.

په دغو پاندو او غورځنګ سيندونو کې يو سوات نوميږي، چې د دردستان او بلور له لوړو سيمو څخه را بهيږي، او له اشو کالامه بيا تر هغه ځايه چې په نسته کې د کابل د سيند سره نښلي، اوږدوالی يې (٦٠) ميلو ته رسي. دا يوه داسې ښکلې او د ليد وړ سيمه ده. چې د شمالي پښتونخوا په غرنيو برخو کې يې ښکلا او خلا هيڅوک نه شي هېرولای.

د سوات نوم د تاريخ له پلوه هم خورا لرغونی دی. کله چې آريايي قومونه

له باختره او د هندوکش له شنو او ښایسته لمنو څخه دري زره کاله د مخه، ختیځ پلو ته وخوځېدل، نو د دوي د لرغوني کتاب ریګوید د سیندونو په سندرو کې کله چې د کابل، کورم، گومل، اباسین نومونه ستاییل کیږي، د سوات رود د سو یتی Sueti په نامه یادیږي، او په یوه بله سندره کې هم دغه سیند سو استو Souvastu بلل شوی دی (۱) او ددغو دواړو یادونو څخه دا ښه ښکاري چې د آریانو د لېږد په وخت کې دغه سمسوره سیمه ودانه وه. او دغو لېږدیدا— ونکو خلکو پېژندله او پکې میشته شوي وو.

* * *

د ریګوید تر عصر را وروسته چې اریایي قومونه د هند په شمالي خوا کې خپاره او ودان شول، د سنسکریت د ژبې لوی پوهاند او گرامر لیکونکی پانی نی PANINI چې د ۵۰۰ ق، م شاوخوا کې د اټک پر غاړه اوسیده، دی هم وایی چې د سواستو Suvastu رود د خپله معنا ونه سره GAURI ( پنج کوره ) د گندهارا په شمالي خوا کې له اډهیانه UDDIYANA څخه را بهیږي. چې د پنډو کمبله PANDU—KAMBALA (= پنډو + کمبله) په نامه یې شړی مشهوري وي (۲). د هند یو مشهور پوهاند اګره والا لیکی: چې د پانی نی په وختو کې دغه دواړه رود ونه سوات او پنج کوره مشهور وو. چې د گندهارا په لوړه څنډه اړیانه کې بهېدل. (۳) د سوات دغه بهاند او فیاض رود په مهابهارته کې د بهیشمه BHISHMA په نامه یاد شوی و (فصل ۹) چې آریان ARRIAN یونانی مؤرخ د ۱۷۵ م په شاو خوا کې سواستوس SUASTOS بللی دی، چې د بودا یې لیکوا او په قول دا د مملکت یوه سیمه وه او لرغونی پایتخت یې د ارشته پوره ARISHTHA—PURA په نامه د سوات اوسنی چار باغ و. (۴)

---

(۱) د ریګوید انګریزي ترجمه ۱ ر ۲۲۲ ه سندره ۵-۹-۱۰ د سوات د کلمې یو څه سي او تخمیني تحلیل ددې سریزې په لسمه برخه کې ولولیء.

(۲) د پانی نی کتاب: اشتاد هیایي (اته ویناوې) پنجم ۲، ۷۷

۳- V.S. Agravala India as Known to Panini. Lucknow42. 1953

۴-Nundo Lal: The Geographical Dictionary of AncientIndia. 199. Delhi 1971.

د سوات جغرافي موقعيت داسې وچې د پښتونخوا د شمالي څنډې د غرونو په لمنو کې د هند لوېو لارو ته نږدې په يوه زرغونه او ډېره ښکلې سيمه کې پروت و، او آريايي خلکو د ريګوېد د زماني راپدې خوا، د دغو غرو او رودو سره مينه درلوده، او پکې ميشته کېدل به. د دغه خاك چې د خپلو اجتماعي پړاونو تېرېدلو په سلسله کې له کوچي ژوندانه زراعتي او کليوالي ژواك ته رسېدلې، نو د دوي لپاره د سوات غرونه او سمسورې سيمې تر ګردونورو ځايو خورا ښه هوساتون ګڼل کېده، د کرښتې، او رشو پراخه وه، او په او هوايي هم خورا په زړه پورې او د سهلو وروه، دالاخه کوې چې د جهانګيرانو او پر غلګرانو لاسخپواو آزاوه به لا هم خونديوو.

د ۳۲۶ ق،م کال ژمې و. چې اسکندر مقدوني فاتح د کونړ په سيمو کې د اسپزي (يوسفزيو) سره وجنګېد او له دغه ځايه پر باجوړ او چکدره ور تېر شو، سوات يې تر مساګې پورې ونيو. وروسته د اټك له لارې پرا باسين ورواوښت او تکسيلا يې ونيوله. د سکندر برم پردې سيمو باندې تشه يو تېرېدونکې ووا وه. خو تر ده ور-وسته د ده پاته شوي جنرالان په باختر او پښتونخوا کې پېړۍ پېړۍ د اقتدار ملونې په لاس حکمرانان وو. او له ختيځه پلوه د هند د سوريا کورنۍ شپېتلي پاچهي د چندرا ګوپتا په مخکې جوړه شوه (۳۲۳ ق.م) او د هندي کلتور اغېزې يې په پښتو-نخوا کې د يونانيو رشو او دودونو سره ګډې کړې، چې وروسته په ۲۶۰ ق م مهار-اجه اشوکا د بودا دين هم ور سره خپور کړ. او په دې تهذيبي اختلاط کې د سوات سيمې د ګريکو بوديك مدنيت اغېزې موږ او بيا چې د ميلادي کلونو په پيل کې د کوشاني قومونو اقتدار او مدنيت خپرېده، او د کنشکا د ژمې پايتخت پېښور، سوات ته ورخرمه و، نو د کوشاني کلتور ډېر آثار تراوسه لا هم د سوات له هره ګوټه څخه راوزي.

* * *

د ميلادي لومړيو درو څلورو پېړيو په ترڅ کې د سوات سيمه د بودايي کلتور د سمسورتيا او خورېدلو ځای و. او کله چې به له نورو ليرو هېوادو څخه بودايي ښېي (راهبان) د زيارت لپاره راتلل، نو به دوی د سوات بودايي مقدس مقامات

هرو مرو لیدل. لکه چې درې تنه چیني بودایي راهبان په لاندې ډول سوات ته راغلي او پخپلو یون لیکونو (سفرنامو) کې یې د سوات یادونې داسې کړي دي.

په ۴۰۰م، کال د چین بودایي زایر فاهیان، له چانګان څخه د بودایي مقدسو سیمو د زیارت او د هغې نایابو کتابو د ټولونې لپاره په یون پیل وکړ. او تر ۱۴ کالو سفر وروسته په ۴۱۴م کال نانکن ته ورستون شو.

فاهیان له کاشغره د پامیر سیمو او ګندهارا ته راغی. بنو ن، هډه، جلال آباد پېښور یې ترسوا ته ولیدل، دی وایي: چې اوچینګ (اودیانه) د هند د شمالي برخې پیل دی او ټول خلک د منځني هند په ژبه غږېږي، جامې او کره وړه یې هم د منځني هند خلکو ته ورته دي، د بودا دین دلته ډېر وده کړې ده او د راهبانو د هستوګنې لپاره ډېرې سنګها راپېښته، چې شمېر یې پنځو سوو ته رسېږي، او د کوچني یون (هینایانه) په مذهب اړه لري او خلک وایي چې بودا د خپلې پښې نو پل (منځه) دلته پرېښوولی و. چې د لید ونکي د عقیدې سره سم په کله اوږد او کله لنډېده. دلته یوه ځګه او خوراښو یه تیږه هم وه. چې بودا خپلې جامې پرغوړولې وې، او په هم دغه سوه هو. توکې بودا د کوترې د نجات لپاره خپله یوه ټوټه غوښه باز ته ورکړې وه. او خلکو پر دغه ځای باندې یوه زرنګاره ستوپه جوړه کړې وه. (۱)

بل چیني زایر چې په ۵۱۷ کال یې د دې سیمو ته سفر وکړ سونګ یون دی. دی وایي چې د اودیانه او بلور په درو کې یې د اوسېدونکي دوانه او غټ ځنځیران د پلونو په توګه استعمالول او د دې ځای حکمرانان غوښې نه خوري. د پوستو غذا یې خوړه، د بودا تینګ درووړی و.

سونګ یون د سوات بودایي معتبر ځایونه لیدلي او د بودا د هغو پلونو (منځه وتو) زیارت ته ځي، چې د مخه یې د فاهیان په سفرنامه کې هم ذکر شوی و. هر

(۱) د فاهیان سفرنامه ۱۵ د ګیلس انګرېزي ترجمه، د کمبرج چاپ ۱۹۲۳م.

ځای معابد، بودتونونه او د بېهېو تيا تو بې وځني او په سوات کې د بودايي دنيا عجايب بيانوي . (۱)

تر سونګ ـ ين يوه بل زاير را وروسته د چين بل بودايي مسافر هيون ـ څنګ دی. چې په ۶۲۹ کال د لوېديځو هيوادونو په ليدنه کتنه را ووت. او په ۶۴۵ کال بېرته خپل وطن ته ستون شو. ده د بودايي غټ يون (مهايانه) ۱۲۳ توکه کتابونه په دې سفر کې موندلي و. چې پر ۲۲ آسو يې چين ته ورسول او خپل يادداشتونه يې په يوه کتاب کې وليکل، چې سی ـ يو ـ کي نوميږي يعنې د «لوېديځې نړۍ يادونې» .

هيون ـ څنګ د ۶۳۱ م (۹ ه) د جنوري په لومړۍ ورځ په اوديانه کې و. او له دې ځايه چې اوس يې مردان بولي سواستو Su—FA—SA—TO ته د مارچ په اوله ورځ ورسېده، او بيا په اپرېل ۶۳۱ م (۱۰ ه) تکسيلا ته ولاړ .

د هيون ـ څنګ د سفر وخت په پښتونخوا کې هغه زمانه ده، چې د اسلام د دين رڼا لا دې سيمو ته نه وه رارسېدلې. د هجرت نهم کال و، او د لته د بودا د دين کوچنی او غټ مذهب خلکو مانه. ګندهارا او اوډيانه (مردان) او سواستو (سوات) د بودايي دين مرکزونه وو. او په سوو بودتونونه د بودايي راهبانو او ستانو څخه ډک وو .

هيون ـ څنګ چې کله پېښور ته راغی د دې ځای حکمران يو کشتر په (له لښکري دلې) څخه ډېر هوښيار سړی و، ده د هيواد قلمرو ۲۰۰ ميله و، پر اسو نورو هيوادو يې حکم جاري و هر کال به يې د بودا يوه ميله ۱۸ فټه جګه مجسمه جوړوله، او د بودا مذهبي لويه جرګه (مو کشامها پريشاد) به يې هم سره راغونډوله. سل بودتونونه په شپږو زرو بهېښو ډک وو. تر پېښوره او اټکه يې حکم چلېده. هيون څنګ د سوات د سيند پر دواړو څنډو پوزو او څلورسوه سنګهارامې ښيي، چې د ده په وخت کې ځيني ورانې شوي وې او پخوا اتلس زره راهبان پکې اوسېدل. د دې سيمې څلور پنځه ټينګ ښاروونه لرل او د حکمران ناستون يې منګلا نومېده، چې اوسنی

---

(۱) سی ـ يو ـ کی پښتو ترجمه ۶۶ د کابل چاپ ۱۳۵۷ ش

مینګوره به وي . د دې ځای ر شمال ختیځ خواته د اپالالا ناګا د ناګ د سوات د سیند سرچینه وه ، او بیایې لویدیځې خواته د بودا د پله (سنګ) زیارتګاه او د چیني د وچولو تیږه او د مهاوانا بودتون او د بودا د لرغونو ژوندونو متعدد یادګارونه او ستوپې د هیون تسنګ په سفرنامه کې یادشوي دي . چې د سیمې د خلکو عقیدوي لوېدلي حالت او په خرافاتو کې غوټې وهل هم ښه څرګندوي . (۱)

د هیون تسنګ په قول سوات ۶۰۰ لي (۱۰۰ میله) له پېښوره شمال ته پروت و چې اوچنګ - اودیانه یې باله او د اد سنسکریت کلمه اوجانه ده چې معنایې لوی باغ یا خوړا زرغونه او سرسبزه سیمه ده . او چاپېریې ۵۰۰۰ لي (۸۳۳ میله) وه. چې تر سوات رود ګرده لاندې سیمې یې شمېرلې کېږي : لکه پنج کوړه - باجوړ - سوات بونېر . او په هم دغه سیمه کې د بودا یوه د لرګي غټه مجسمه ۱۰۰ فټه جګه ولاړه وه چې د اشوکا د سلطنت په ۲۳۳ ق م کې درول شوې وه . (۲)

*          *          *

تر اسلام د مخه د سوات شهرت او ودانۍ او فرهنګ په لوړ پول د هندي او نورو مقاماتو څخه یو ګډ او مخلوط ژواک و، چې د پښتونخوا تېر تاریخ او فرهنګ کره وره هم کټ مټ د ښي وو . دلته د کوشان له کورنیو څخه مختلفې ډلې او له یفتلیانو څخه پاتې کورنۍ د پښتونخوا په ګوټ ګوټ کې د حکمرانانو په توګه پاتې وې . لکه چې د کابل پاچاهانو کورنۍ له کابله تر باميان پورې د اقتدار خاوندان وه ، او شمالاً هم د دوی اقتدار تر سواته خپور و . او ددې مقصد لپاره اوس یو ژوندی سند هم شته ، ځکه چې د سوات په بریکوټ کې یوه بولیک په سنسکریت او سره دا ناګري خط په ۱۸۹۷ م پیداشوې چې اوس د لاهور په موزیم کې دی . پر دې ډبره داسې کښلي دي .

---

(۱) وګورئ د سي - یو - کې پښتو ترجمه . دریم کتاب ۱۸۵

(2) Cunningham: Ancient Geography of Ondia 83. Con don 1871

«دستر حکمدار او تر کردوشاهانو غښ، لوی پاچا سري جېه پاله دیوه په پاچهی کې . » (۱)

دغه جېه پا له (جېپال) هغه کابلشاه دی، چې دپلار نوم یې بهیم دیوه و او د ۳۰۰ ه په شاوخوا کې یې پاچهي کوله. جېه پاله په ۳۹۳ه=۹۰۶ م پا چا شو، او دالعتبي په قول په ۳۹۳ ق یې ځان وسوا ځه (۲) دغې کورنۍ دا سېر سبکتګین د غز نی د پاچا سره دغري ووهلې، او کله چې له کابله یې کوره شو نو بیا دا باسین پر غاړه په ویهند (هند) کې دو هم پایتخت جوړ کړ، او له لغمانه تر پکهلی پورې دسوات په شمول ددوی مملکت و، (۳) خود سلطا ن محمو د پ غلونو دوی نوتره کړه، څوچې ددې کورنۍ وروستي پاچا بهیمه پا له دالبیروني په قول په ۸۱۴ ق (۱۰۲۶م) ووژل شو. (۴)

دا خبره هم د هیرولو نه ده چې د اسلامي عصر په شروع کې هو کا بلشاه (یا وهمن مردانشاه) له زاوله ترا باسینده (حدود ۶۰۰ م) حکومت لاره، چې ار سکه یې :« بګث خوتای وهمن مردانشاه) په پهلوي رسم الخط کښلی دی (۵) او بیا یې چې ددې کابلشاه هیواد به هروسرو ترا باسینده پورې اوږد و، او دسو ا ت جنو بي سیمه په دمردان په نامه دده په هیواد کې شامله وه. نو ځکه د ه ځا ن (مردانشاه) گا نه. اود غه داوسني مردان نوم به هم له هغه وخته پاتې وي. چې دسوات بهاند رودهم په دغه سیمه کې د کابل په رودګډیږي.

---

(۱) سراولف کیرو: پټهان ۱۱۲ دلندن طبع ۱۹۵۸ م

(۲) تاریخ یمیني ۱۵۹ دلاهور چاپ ۱۳۰۰ ق.

(۳) وگوریء. افغانستان بعداز اسلام ۷۱ ر ۷۱ تر م ۱۰ ۱۰۷۱، تر ۱۰۸۲

دکابل چاپ ۱۳۵۷ ش.

(۴) کتاب الهند ۱۸۲ ر ۱ انګلیسي ترجمه دلا هور چاپ ۱۹۶۲ م.

(۵) افغانستان بعداز اسلام ۱ ر ۰۰۰ .

دغه سیمه چې اوس يې د یوسفزو سمه یعنې اواره دځکه بولي ، عربو ( الاهوار ) بللې وه ، اوداسلام رڼا هغه وخت د لته خوره شوې وه چې د کابل اسلامي فاتح عبدالرحمن بن سمره په ۴۴ ق کال سوه‌سالار مهلب بن ابي‌صفره ( فارس الفرسان ) دې سیمې ته راواستاوه ، اوده د کابل او ملتان په منځ کې بنه‌اوالاهوار ونیول او يوه عربي شاعر وويل :

الم تر ان الا زد ليلة بيتوا    بينة كانوا خيرجيش المهلب (۶)

کده هم د بنه او الاهوار املا په خطي نسخو کې کرغیږنه شوې او په هوډ و له راغلې ده ، خوزه دلته د یوسفزیو افغان لیکوال سره متفق يم ، چې دالبلاذري بنه بايد اوسنی بنه ډهیري وي ، چې‌دسردان په تو تالی کې د نهر گوما تی څخه دوه ميله لیري یوه دخاورو غونډۍ ده ، چې دارغون چارواران کنډوونه هلته تر اوسه لاهم لیدل کیږي . امادعربي الاهوار خوپه‌څکاره دغه پښتو نوم (هواره) دی‌چې اوس يې دیوسفزوسیمه بولي .

* * *

اوس خونو داڅکاره شوه چې‌داسلام رڼا داوسنۍ هجري پیړۍ په منځ کې دغې‌سیمې ته رارسیدلې‌وه . چې‌دسوات اود کابل درودود پیوستون‌ځای دی . او له دې‌څخه هم‌سړی‌ويلای شي ، چې په دریمه اوڅلورمه هجري‌پیړۍ کې به دغزنو یانو دیرغلونو سره سم داسلام دین په‌سوات کې هم‌خور شوی وي چې لاندې‌خبرې هم دغه راښيي :

---

(۶) البلاذري : فتوح البلدان ۵۳۱

(۷) الله بخش یوسفي : یوسفزئی افغان ۲۵۹ د کراچی چاپ ۱۹۶۰ م .

حدودالعالم ۳۷۲ ق :

په اسلامي دوره کې تر ټولو لومړۍ ذکرشوو بلادونو وروسته ديوه جوزجاني ليکوال ليکنه هم شته . ددې ليکوال نوم نه دی معلوم ، خو خپل کتاب حدود العالم من المشرق الی المغرب يې په ۳۷۲ کال په دري ژبه کښلی دی . چې يوه خطي نسخه يې په شوروي اتحاد کې په ۱۹۳۰ م په عکسي توګه چاپ شوه .

په دې کتاب کې دسوات ذکر ، نيغ نه دی راغلی . خو د شاو خوا سيمو نومونه يې راوړي دي مثلاً دا سيمې سوات دشمالي غرو سوات د بلور په څرګندونه کې وايي : « بلور ، ناحيتيست عظيم و اين ناحيت را ملکيست و چنين ګويند که ما فرزند آفتابيم و تا آفتاب بر نيايد از خواب بر نخيزد وګويد که فرزند نبايد که پيش از پدر خيزد و آنرا بلورين شاه خوانند و اندرين ناحيت نمك نبود ، مګر آنکه از کشمير آرند . »

(حدودالعالم ، د بارتولد عکسي چاپ ـ لنين ګراد ۱۹۳۰ م )

محمد حيدر دوغلات ، بلور د شرق له خوا د کاشغر او يارکند او له شما له د بدخشانه سره نښلوي . لويديځ ته يې لغمان او کابل او جنوب يې د کشمير سيمې ګڼي . (۱)

له دې څخه ښکاري چې د بلور سيمه ډېره پراخه وه . د کشمير د غرو له لمنو څخه شروع بيا داوسني نورستان تر کښتو درو پورې رارسيده . اواوسنی سوات ګرده يکې رالغښتی و . داچې ددې غرنۍ سيمې حکمدارانو خپله کورنی په لمر پورې نښلوله هيون څنګ ترحدودالعالم درې سوه کاله دمخه داقصه اروېدلې اوليکلې دی ، چې دچين يوه شهزادګۍ (پېغله) ديو ـ له ـ سو (پارس) يوه پاچا ته ودوله کېده خو ديوه اړودوړ په سبب ، دلته ديوه غره پرڅوکو ساتله شوه چې څوك لاس وروانه چوي مګر ماپښين له لمره يوڅوك راشيو شوا او دا يې براليه کړه ، او له نسه يې دغه کورنی

(۱) دوغلات : د تاريخ رشيدي انګليسي ترجمه دلندن چاپ ۳۸۵ دمينارسکی حواشي پرحدودالعالم د کابل چاپ ۲۱۶

را پیدا شوه . (۱) چې سراو ریل‌ستېن د غه ځای د پامیر اوسنی قزقرغان (قلعهٔ دختر) ګڼي . (۲)

په همدغه کتاب کې په دغه وخت کې د غه جوزجاني مؤلف د ننهار په باب لیکي:

« ننهار: جاییست پادشاه او مسلمانی نما یدوزن بسیار دارد از مسلمانان و از افغانان و از هندوان . » (۳)

بل ځای د سمرقندان په بیان کې وایي چې دالوی کلی دماوراءالنهر سرحد دی او هندوان ، وخیان ، تبتیان او مسلمانان پکې اوسي . (۴)

له دې تولو شهادتونو څرګندېږي چې د اسلام رڼا له لومړۍ پېړۍ څخه بیا تر ۳۰۰ق پورې د سوات د غرونو څنډو او جنوبي سیمو ته رسېدلې وه .

د (۵۰۰ق) په شاوخوا کې د سوات سیمې په کشمیر پورې نښتې وې ، او هلته پوه شنسي حکومتونه ، چې عناصر یې برهمني هندي + د اسلامي فرهنګ په ګډون وو .

د کشمیر مورخ کلهڼه په خپل کتاب راجه ترنګیني کې د هغه ځای د هندو حکمرانانو کورنۍ او احوال راښیي . مثلاً هرشه د یوه (۱۰۸۹-۱۱۰۱م) سیمها دیوه (۱۲۸۶م) وغیره چې ددوی په حکمدارۍ کې مسلمانانو کشمیر ته مخه کړه ، او له شاوخوا څخه هجرتونه ورشروع شول په (۱۳۲۰م-۷۲۱ق) ؤ در د سوات خلك د کشمیر په حکومتي چارو او اسلامي فرهنګ خورولو کې لګیاشکاري. یو له د غوسوا تیانو څخه «شامیر» نومیده ، چې د کشمیر د حکمدار رینچن صدرالدین (۱۳۲۰-۱۳۲۳م) وزیرو او وروسته یې له اودا ننه د یوه (۱۳۲۳-۱۳۳۹م) او ملکې کوته راني (۱۳۳۹م) څخه قدرت په لاس کې ونیو . او په (۷۳۵ق-۱۳۳۴م) یې د سلطان شمس الدین په لقب (طاهرمیرزا) په کشمیر کې د سواتي کورنۍ د سلطنت ستنه ټینګه کړه او د عدالت او مساوات پر لاره چارو یې حکومت چلاوه . د کروندو څخه یې یوه شمیر مه

---

(۱) سی-یو- کی دیپل ترجمه ۲-۲۹۶
(۲) مینارسکی : دحدود العالم حواشی ۲۱۷
(۳) حدود العالم ۶۳ د تهران چاپ ۱۹۳۲م .
(۴) حد و د ۷۳

ما ليه الخيسته (وفات اكست ١٣٣٢م). (١)

دشاه ميرسواتي كورنى ابوترابه دوې پېرۍ پرتول كشمير باچهي وكړه

زمباور ددغې حكمراني كورنى شجره داسې راوړې ده:

* شمس الدين شاه مير
٧٣٥ ق.

هندال — *٥- قطب الدين (٧٧٢ ق.) — ٣- علي شير (علاء الدين) (٧٤٠ ق.) — ٤- شهاب الدين (٧٥٢ ق.) — ١- جمشيد (٧٣٨ ق.)

٦- سكندر شاه بت شكن (٧٨٨ ق.)

٧- علي مير خان (٨١٣ ق.) — *٨- شاه خان زين العابدين (٨٢٠ ق.)

*٩- حيدر شاه حاجي خان (٨٧٢ ق.) — آدم خان

*١٠- حسن شاه (٨٧٤ ق.) — *١٢- فتح شاه (٨٨٨ - ٩٢٣ ق.)

*١١- محمد شاه (٨٨٦ ق.)

لور (دكاشغر د حكمران سكندر ماينه) — ابراهيم

*١٣- نازك شاه (٩٢٤ -٩٤٢ ق.) — *١٥- اسماعيل ٩٦٢ ق. — *١٤- ابراهيم (٩٤١-٩٦٠ ق.)

---

(١) دهند بشپړ تاريخ ٥ - ٧٤٠ (انگليسي) دډهلي چاپ ١٩٧٠ م.

* زمباور: معجم الانساب والاسرات الحاكمه في التاريخ الاسلامي ٢ ٣ ٣ د قاهري چاپ ١٩٥١ م.

* دغه ستوري چې دهرحكمران دنامه سره وي، داښيي چې دهغه سكه شته.

لکه چې تاسې ولیدل د شاه میرسواتي د اخلافو حکمراني په کشمیر کې تر هغه وخته وه چې د جلال الدین اکبر په لوبه پاچهي د کشمیر سیمې هم تر کړې شوې خو داسې ښکاري چې د سوات او بلور، چیلاس، چترال، باجوړ، کونړ او کافر-ستان سیمې به د ځینو محلي سلطانانو او ملکانو تر فیوډالي نظام لاندې وې. ځکه چې د دغو سیمو خلکو اوس له کوچي توبه، د کلو او بانډو ژوند هم شروع کړی، او لومړني زراعتي ژوند ته ور داخل شوي وو.

دغه سلطانان د کونړ د پیچ په دره کې اوسیدل. او د اخوند درویزه په قول دوی خپل اسلاف د سکندر ذوالقرنین توکم ته منسوبول. او د حکمرانۍ ځند یې د کشمیر تر ختلو پورې رسیده، او یو له دغو څخه سلطان پکهل بن کهجا من بن هندو (۸۰۰ ق شاوخوا) و. چې نوم یې تر اوسه د پکهل پرسیمه پاتې د پښتونخوا په شرقي شمالي څنډه (ضلع هزاره) کې پاتې دی. او د کونړ په دره کې یې پر غره پوړ بر لیك هم پاته دی. وایي چې تر پکهل وروسته د ده زامن په سوات کې سره ونښتل او په برجنګونه یې سره وکړل، خو سلطان بهرام د کهجا من بلزوی لغمان او ننګرهار ونیول او د سپین غره په لمن (پایین) کې یې ځان ته ناستځۍ (پایتخت، جوړ کړ او تر کشمیره یې پرګرد کونړ او سوات نغاره پرغیده. تر ده وروسته سلطان تومنا هم د بهرام په توګه پر دغو سیمو حکومت کاوه (د ۸۱۵ ق شاوخوا). (۱)

## (۲)

## د ځینو پښتنو قبایلو وروستني هجرتونه او د دوی سره شریك اجتماعی نظام

که څه هم پښتانه په زړو کلیزو د دغې، د آمو او سیند ترمنځ سیمو کې میشته وو، خو په میلادي پنځلسمه پېړۍ کې د منځنۍ آسیا او خراسان او ایران او هند اجتماعي او فرهنګي څېره ډېره سره ورته وه. په دې ارته جهاني سیمه کې اقتصاد، کرهڼه سوداګري، اداره، حکمداري او هنر او ګرده نور اجتماعي توکي، تر څېلو لومړیو پوړونو تېرشوي او د فیوډالیزم د پوخوالي پړاو ته ورختلي وو. ځکه نو موږ په دې سیمو کې خورا غښتلې او متمرکزې شاهنشاهۍ وینو. چې شاهزادګان او غټ

---

(۱) وګورئ: تذکرة الابرار والاشرار د پېښور چاپ ۱۳۰۸ ق او تاریخ مختصر افغانستان ۲۲۲ مخ د کابل چاپ ۱۳۴۶ ش.

زمینداران او پانگه والان (سرمایه داران) او ځینې ستانه (روحانیون) هم غټې غټې برخې پکې لري، او په ملیونو ملیونو بزگرانو او فلاحان، د دوی په خدمت لگیادي.

په دې وخت کې تیموري شاهزادگان په ماوراالنهراو خراسان کې دخپلې کورنۍ د اقتدار خوکۍ ته رسېدلي وو. په ایران کې د آق قویونلو یعنې د سپینو رمو والو ترکمانو مشرانو پاچهي کوله، او په هند کې د افغاني لودیانو د پاچهۍ ستره شاهنشاهي په لاس کې وه.

په دغو پېړیو کې دا باسین او هلمند ترمنځ سیمې د افغانستان په نامه یادې شوې دي لکه چې سوېد دسیفي هروي په لیکونو کې د (۷۰۰ ق) په شاوخوا کې د دغه نوم تکرار وینو. (۱) او داسې ښکاري چې د هند مؤرخانو هم دغه سیمې په همدغه نامه یادې، لکه چې د ضیاالدین برني په لیکنو کې هم د (۷۳۵ ق) په پېښو کې دا نوم راغلی دی (۲)

د دغه افغانستان (لرغونې پښتونخوا) خو پنځه شپږ سوه کاله د غزنویانو او غوریانو په عصر کې د فیوډالیزم د نهایي پوړ یعنې شاهنشاهیو د قدرت مرکز وا او د ختیځ او لوېدیځ ترمنځ د اقتصادي او تجارتي پیوستون او د فرهنگي او سیاسي ښتون لویه لاره هم وه. خو د ۶۰۰ ق په حدودو کې د چنگیزیانو له یرغل سره د دغه اقتصادي او فرهنگي مرکزیت وران شو، او د قدرت مراکز هم نورو خواو ته ولېږدېدل.

د هند او ایران او پاردریا غښتلو پاچهیو دې سیمې لویې لارې د اقتصادي او تجارتي ارتباط لپاره استعمالولې مرکزي ښارونه لکه پېښور، بلخ، قندهار، هرات به یې په عسکري زور په خپل لاس کې ساتل.

د پښتونخوا په غرو او رغو کې هغه پښتانه قبایل آزاد اوسېدل چې دوی کوچیتوب کاوه، او د خپلو سپینږیرو او مشرانو سره به یې او لسي د مرکرا تیکه تسوگه

(۱) په تاریخ نامهٔ هرات (طبع کلکته ۱۹۴۳م) کې ۳۶ پلا د افغانستان نوم راغلی دی او غانستان.

(۲) تاریخ فیروزخان شاهي (۳ر۸۰م) د کلکتې چاپ ۱۸۶۲ م

دحکومتو او شاهنشاهیو له جوړښښت لېرې په آزاد وغرو او دښتو کې په لېږد بوختوو.

د غو پښتنو د خپل دوداو ژوند ژواك سره سمې جرګې درلودې، او په دغو جرګو کې به ددوی مشران سره راټولېدل، او دژوندانه مشکلات به یې اسانول. دغه دودونه او تیاکلې دجرګې لارې چارې اودژوندانه چوچ ګرده «پښتو» بلله کېده نودغه خلك لېږلېږ دستمرکز فیوډالېزم پولې ته ورنېږدې کېدل، او هغه قبایل چې هندته ورشیوه شول دوی دېوه کلك او او پاخه فیوډالي ژوندانه په څپو کې لاهو کېدل

د دغو آزادو قبایلو اقتصادي او معنوي پیوستون د هند وستان له لودیانو سره ترنوورزیات و. ځکه چې هر کال به په ژمي کې دوی دهندتو دوا اورشو ګانو ته ورشوه کېدل، اودهندلودیانو دډهلي امپراتورانو به هم دغه قوي عناصر او تکړه غړي ور غوښتل چې دهند دیاغیانو په ایلولواو ټکولو کې لهدوی څخه کار واخلي. او د دوی ګڼې ډلې په هند کې پر کروندواو پرګڼو میشته کړې، او غټ غټ جا ګیرونه ور کې. دلو دیانو په دوره کې ډېرسوري، فرملی، جلواني سرواني کاکړ، نیازي او نور قبایل هندته دمهاجرو په توګه تللې، او هلته دجاګیردارانو (مقطعانو) په ډول لوی لوی دربارې رجال او غټ باداران ځنې جوړشوي دی (۱)

په دغووختو کې د پښتنو ابدالي قبایل د ترنك اوارغنداو او هلمند په ناوو کې ورو وروډفیوډالېزم (باداری) پوړ ته ور نږدې کېدل. ددوی روابط دهرات دتیمور یانو او دهندلودیانو اوسوریانو له پرتمینو درباروسره لېروډېرپه ووده کې ووه (۲) په

---

(۱) د تفصیل لپاره وګوریء: دضیا برني تاریخ فیروزشاهي، داحمد یادګار تاریخ شاهي، دیحیی سرهندی تاریخ مبارکشاهي، د محمد کبیر افسانهٔ شاهان دعصامي فتوح السلاطین اودشیرشاه سوري تاریخونه.

(۲) وګوریء: دعبدالرزاق سمرقندي مطلع سعدین او دسیفي تاریخنامهٔ هرات او د هندلود یانو اوسوریانو تأریخونه.

دوی کې سترخانان او ملکان پیدا شول . او د قندهار د ابدالیانو لوی مشر ملك یاسي پوپلزي د سلطان سکندر لودي (۸۵۵ - ۹۰۰ق) په دربار د قندهار د سرزبان په توګه وپېژندل شو . (۱) او بیا وروسته د بابري پوکړو سي چې ملك صالح نومېد له سوري شیرشاه سره د ښسې پیوستون لاره او خپل ایلچیان یې د سوري دربار ته استولي وو . (۲) د ۸۲۰ ق ۱۴۱۷م کال د شاهرخ بن تیمور د عصر په وقایعو کې راوړي : چې د قندهار او ګرمسیر او باسین او غزني ترمنځ د قندهاري سوفل زوی او ملك محمد او خرشواني (۳) افغانان او سوریان او سیدل او د هرات د شاهرخ له ښتملي امپراتوری سره یې ډغرې وهلې (۴) .

د غه افغاني ټبې او قبیلې چې د سیفي هروي په قول د هلمند له ناوې او تیري ښخه پیاتر مستنګ او دوکي او ساجی او تیراه پورې (۵) د کسي په غرو او د ارغسان او ماروپ او ښېون په درواو وشوګانو کې د پوئنده وو په توګه پرتې وې ، هره ورځ یې ډیرېدې او نفوس یې زیاتېده . د هلمند او ارغنداو او ترنك ناوې د دوی د ورشو لپاره نه بسېدې او په اوا روسیمو کې یې چې د هرات د کورتیانو او تیموریانو او انورو ښتملو خانانو تر حکم لاندې وې ، هم زراعتي ژوند نشو ای کولای نو د غه پښتانه بیا د خوارلسم قرن په پای کې

---

(۱) راوړتي : د پښتو ګرا ندر سرېزه خطي تذکرة الملوك په حواله .

(۲) راوړتي : دخطي تذکرة الملوك په حواله .

(۳) خرشواني Kharashavani د افغان د سړه بن قیا بلوڅخه و ، چې مؤرخانو خرشبون لیکلی دی او کند ـ زمند ـ کاسي ـ یې د رې فرعي قبیلې دي (مخزن افغاني) د غه ـ نوم پښتو دی : ښه + رشه + وان یعنی د ښه خوی خاوند = نیکخوی .

(۴) مطلع سعدین ۲/ ۳۵۶ د لاهور چاپ .

(۵) تاریخنامهٔ هرات ۳۰۵ - ۲۰۹ - ۲۲۲ - ۳۰۳ .

د کابل د ناڼې زرغونو سیمو ته په ځوځ کو غو لې یواوډغرو لمنو ته ور وخاتل. (۱)

له ۸۱۲ ق څخه تر ۸۵۳ ق (۱۴۰۹ - ۱۴۴۹ م) پورې د تیموري کورنۍ څخه الغ بیګ د سلطان ابوسعید کورګان زوی پر کابل حکومت کاوه، دده په عصر کې د پښتو کند اوزمند او نور قبایل چې دارغسان او رشو پر تنګه شوي وه، د ګومل او نور و پو ند، ګانو سره راوپاڅېدل او کابل ناوې پر او رشو ګانو یا د ي یې واوړل «دوی آباد شول او هغه نو راصلي اوسېدونکي پښتانه یې په ننظر کې نه راوړل». (۲)

دد غو قبیلو - مشران مداد - مدو - عثمان - سلطان شاه نومېدل چې میرزا الغ بیګ (۳) ګرد، سره واتول کړل او د کابل په سیانګ کې یې ووژل. یوازې ملک احمد د سلطان شاه یوسفزي وراره له دغه ناورینه وتښتېد او د یوسفزو سره یوځای د ختیځ په لورې ولېږدېد او د پېښو رسیمه یې ترسوات ونیوله. د لاز اك پښتانه یې وشړل او د کابل او سوات ترو ودولاندې کروندې یې له جمرود، او ګنداوه ترا باسین پورې ونیولې. (۴) د سوات سیمه د پښتنو تر یون د مخه د سواتي خلکو په لاس کې وه حافظ رحمت خان وایي: «قوم صواتي اګرچه دراصل از قوم افغان نیستند، اما زبان افغانان وروش افغانان دارند...

از اول در ملك صوات و باجوړ سکونت میداشتند، اما وقتی مردم یوسف زایي بحد کمال رسیده همګي ملك سم تحت الجبل را در تصرف خود آورد ند، متوجه ملك صوات شدند و با اهل صوات جنګها درپیش آورده، آخرالامر آنها را مستاصل ساخته وجلاوطن ګردانیدند ... وقوم صواتی ازانجا بملك پکهلی که ما بین یوسفزئی و کشمیر واقع است آمده و متوطن شدند ... و جمع ایشا ن متفرق شـده ګـــر و ه انــد : یکـــی ګـبــر ي . د و م مـــو تـــــر اوی

---

(۱) اخوند درویزه : تذکرة الابرار والاشرار ۱۲۴. افضل خان خټک: تاریخ مرصع ۲۳۱. محمد هوتك : پټه خزانه ۲۱.

(۲) تاریخ مرصع ۲۳۳

(۳) اخوند درویزه دغه نوم میرزا قلي بیګ کښلی دی (ص ۱۲۶ تذکره) خو د نورو مؤرخانو په قول الغ بیګ صحیح دی (مړ ۹۰۷ ق غزنی)

(۴) ددغو مهاجر تو لولهاره وګورئ : تاریخ مرصع ۲۳۱ تذکرة الابرار ۱۲۴ حیات افغانی، تواریخ حافظ رحمتخاني او مخزن اونور.

سوم سومیانی . وگویند که مردم گبری (منسوب به گبر جایی در باجوړ) از اولاد ـ سلطان اویس وسلطان بهرام وسلطان پکهل وسلطان جهانگیر اند وایشان را سلاطین جهانگیریه نیز میگویند.»

(خلاصة الانساب ۱۴۷ د پېښور چاپ ۱۹۷۳ م)

په دغو وختو کې د دغو پوندو او کوچي خلکو د بوازي بوند د گلوی او کوچي ژوندا ـ نه له اقتصادي مرحلې څخه په زراعتي پوړ کې پښه کېښوده، او د دغو نوو نیولو سیمو په کلو او بانډو کې پر کروندو او ماڼتو او خوړو مځکو باندې میشته شول، او په کرهڼه او فلاحت یې پیل وکړ او دغه د دوی د ژوندانه یوه نوې مرحله وه.

ملك احمد یوسفزی د دغو پښتنو لږ د پدونکو قبایلو مشر و، چې په زراعتي ژوندانه کې یې د دوی مشري کوله. ده د شیخ آدم یوسفزي په کومك (چې په شیخ ملي بن ـ یوسف مشهور و) دغه نوي په کلو او بانډو کې کښېښتلي قبایل منظم کړل، او د دوی ته یې یو «اجتماعي نظام» وروجوړ کړ. او په امنیت او هوساینې یې ترسوات ته پر کروـ ند ومیشته کړل. د خوشحال خان زوی د آدم او درخانۍ په مثنوي کې وایي: یوسفزي په هغه دور ـ د کوچي عالم په طور ـ په هر ځای کې یې میشته و ـ گاه په سمندگاه په سپره وه ـ گاه په لاړه د غره خوا ته گاه به بیا راغله دریا ته ـ حادثات په حادثات شول ـ لا ړل میشت په سمه ، سوات شول.

شیخ ملي چې یوه اوستا نه سړی و، او گردو پښتنو په درنه سترگه ور ته کتل. د ملتن په توگه یې د (۸۲۰ق =۱۴۱۷م) کال په شاو خوا کې په پښتو یو د اجتماعي قوانو ن کتاب و کیښ چې خلکو د «شیخ ملي دوتر»=(دفتر شیخ ملي) باله.

ځکه چې له پېښوره بیا تر اباسین او شمالا ترسوات ته پورې گردې د کرهڼې مځکې د دغو مهاجرو قبایلو نیولې وې، او په نوي ژوندانه یې شروع کړې وه، نو شیخ ملي د کروندو او بانډو او اوړشوگانو د وېش لپاره د عدالت او مساوات پر اساس برابر پخپل دفتر کې داسې لارې چارې او قوانین وضع کړل، چې زراعتي مځکې، اوبه، اوړشو او کلي یې د کورنیو د نفوسو د شمېر پر سر په مساوي ډول وویشل، او دغه وېش به د قوم جرگې همدانه او هروه رو په خلکو خپله تا کلي شوې کروندې کرله اوله زراعتي د رامد څخه به یې هم د شیخ ملي د دوتر» د قوانینو سره سمه گټه اخیسته.

ځکه چې د کورنیو د سړو شمېر به زیاتیده یا به کمېده. نو دشیخ ملي په دفتر کې دا مثلې شوې وه چې تر هر ولسوکالو وروسته به کرده کرونده اومامتې او کلي او با نډې به «ملکیت عامه» کې داخلېدې، او بیا به د کورنیو د سړو پرسر با نډې په مساوي تو ګه و پشلې کېدې. که به د یوې کورنۍ خلک لږ شوي وو، لږ برخه به یې اخیسته او د برو به د ډېرو برخه مونده. د کرو ندو پهوېش کې به د ځمکې زراعتي استعداد اوسرآب او پایان آب ترنظر لاندې و. او با نډې او کلي او کو، و نه به هم د سړو پرسر وېشل کېدل. چې هر ویش ته یې «واو» وایه.

دشیخ ملي په دو ترکې لومړی پلا کرده ځمکې پر شپږو ټپو TAPAویشلې شوې وې

۱- د یوسفزو ټپه (دشمالي مردان سمه او سوات)

۲- د محمد زو ټپه (اشنغر، چارسده)

۳- د ګګیانو ټپه (دوابه، باجوړ، چارمنګ ...)

۴- د داؤد زو ټپه (کلماني، بګیاري...)

۵- د خلیلو ټپه (له پېښوره ترنو ښاره...)

۶- د مومند و ټپه (د پېښور شمال غربي پلو تر جنوب غربي پورې)

دغه شپږ ټپې هره یوه پر دو تر، برخه، پټیو یشله کېده. او د هر سړي برخه به پټي یعنې کرونده او زراعتي ځمکه کې و نډ WAND بلله کېده او دخړ په ځای کې او. شو URSHO وه. چې د کلي جرګې به دغه ونډه او او رشو د هیسك HISK یعنې پچې په وسیله تا کل، او په هره برخه کې به یو څه زراعتي ځمکه د سېری SEERY په نامه له دو یشه څخه بیله ایښو له کېده. خو په ګډه به د هغې برخې کرو نکو کرله او حاصل به یې د کلي دها موګتو په کاروکې لګول کېده. لکه د مسجد (مزدك) او د کلي د هلکانو د تعلیم کا روته، او هم د کلي د دم د کورنۍ خرڅ چې کار یې ډول وهل، خلك خبرول، دلا کې، پخلنګ او سندرغا ړي او نور د کلي عامه خدمتونه وو. او هم به له د غه سېری څخه د کلي د هوجرې (میلمستون) او د میلمنو د خسمانې لپاره خرڅ کېده.

دشیخ ملي په دفتر کې دهستوګنځیو او کورونو او کلیو دویش لپاره هم لارې چارې تیا کلې وې هر کلی پر محلاوو بشلی کېده چې هغه ته چم Cham بلله او هر چم په اوز کورونه دکندر Kandar په نامه درلودل. او هر کندر به خونې دکوټې په نامه Koota لرلې . چې یوغولی Ghoolay به یې هم لاره. په هرچم کې یو ساجت (مسجد) او یوه هوجره Hujra او یو برج به هم و. چې ددفاعي ځارنو لپاره به ځار ټوا لان یکې ناست وو، او هر کندر به ترلسو کالو پورې یوې کورنۍ ته سپارل کېده .

په کرونده کې دیوه سړي برخه بګړی ونډ Bagray Wand و. او ټوله دلسو کالو برخه به یې موټی Muti بلله.

دشیخ ملي ددفتر ویش په کروند واو او رشواو کورونو کې دهرو لسو کالو لپاره په شپږو تېرو کې تطبیق شوا ؤ خلکو دشیخ ملي په لارښوونه ومانه . دا ځکه چې هم ملك احمد او هم شیخ ملي دواړه دپښتنو منلي رهنمایان وو. لکه پیر معظم شاه چې وایي :« روز گار ریاست ملك احمد در تصاعد شده ، روز بروز در ترقي گشت وتمامي خښی بلکه تما مي افغان مطیع او گشتند .. . گویند شیخ ملي نهایت متدین ، متقي سړی و. دهرچا رې او دهر مهم غمخو رو . همگي کلي ، ملکونه ټپه په ټپه کورپه کور ، دده په دفتر ختلي وو.اود ده وېشلي وو.او تر اوسه هم دده هغه تقسیم په یوسف ، منډ ن کې جاریدې ...» (١)

په دې ډول دشیخ ملي ددفتر اجتماعي ریفارم په زراعتي ژوندانه کې تطبیق شو خسورو سته نور افغاني قبایل هم دلته راغلل او ځینې نورې کروندې یې ودانې کړې . نو دغه نوې خړوبې شوې ځمکې یې بانډه Banda بلله ، او په دغو نوو بانډو کې هم افغاني نوي را لېږ دېدلي قبایل د شپږو اصلي تـږو په څنګ کې مېشته کېدل .(٢)

---

(١) تواریخ حافظ رحمت خانی ٣٥ د پېښور چاپ ١٩٧١ م.

(٢) هستنگر او گوپالداس : تاریخ پشاور ٩.٣-٣٣٣ دلاهور چاپ ١٨٧٣ م. حبیبي : د پښتو ادبیاتو تاریخ ٢ر ٢٣٥ د کابل چاپ .

وايي چې شيخ ملي «درانده سالها بعد از ان بمعارضهٔ شري از عالم فاني به دار بقا قي خرا ميده و در موضع غوربندي دسوات دلويې لارې په غاړه چې د مغاره ته دروومي , به سمه هموار مز... مدفون شو . او گرد اگرد قبر يې دچنارو ونې ولاړې دي. اوس ترې چاپېره لوی کلی هم ميشت دی، قبرد ده هورته نمايان دی.» (۱)

د روښانه ليکي : «شيخ ملي در مرض موت خود گفته بود که من در تمام عمرخود انصرام مرام اهل حوايج ، گاهي به طمع دنياوي نکرده ام ، بلکه خالصا لله کرده ام پس اگر درين سخن راستگو باشم تقسيمات ملکها و تعينات حدود ها که فيمابين يوسفزي کرده ام تا روز قيامت باقي بادا . واگر دروغگو باشم از ميان ايشان مرتفع باد .» (۲)

په دغه ډول شيخ ملي خپل دفتر اروېش بشپړ کړ ، او ترده وروسته يو کال پس ملک احمد هم تر دنيا تېر او په سوات کې هغه ځای ته نژدې ښخ شو چې د شيخ ملي هديره هم لوېې لارې ته ورخوا ده . (۳) اوده غو واقعو کلونه په اټکلي توگه له ۸۵۰ تر ۹۰۰ ق پورې گڼلای شو.

اخلاقي ضوابط :

دشيخ ملي دفتر لکه په اقتصادي چارو کې چې د پښتنو لارښوونکی و ، دغسې يې د يوه جزايي او تعزيري اسلامي قانون په ډول ځينې اخلاقي ضوابط هم درلودل په هر کلي کې به د غه ضوابط د عالمانو او سپين ږيرو په وسيله د هغې سيمې دخلکو داجتماعي دوداو دستور رسره سم تطبيق کېدل. پير معظم شاه وايي :

« يوسفزي ماله ډېر خوش خويه ، نېک معاش خلق وو . ددې قوانينو مطابق به يې بېلمانو زانو ، جوار گرو ، نشه ئېزو ، زناکارو او نورو فواحش کونکو ته سزا گانې ور کيدې . په ټوله قبيله کې به د ي قسم

---

(۱) تواريخ حافظ رحمت خانی ۱۳۵
(۲) تذکرة الابرار والاشرار ۱۳۶
(۳) تواريخ ۱۳۶

عادا تو سخت بند يزو. دې ضابطې ته به يې «شيخ ملي» وېل ې په ذريعه به په کال کې يو خل په زېرګه معاشت کې د ټول اولس، اخلاقي تطهير کېده...»
(د تواريخ رحمت خاني مقدمه ۲۹)

دغه سزاګانې دشرعي تعزير او تشهير پر اساس داسې وې لکه: پرخره سپرول، مخ ور تورول او په کوڅو ګرزول، د بدکارې ښځې سرور خريل په شرعي ډول په ورووهل پاسنګسارول.

# بابر «۳»

ظهيرالدين محمد بابر دعمرشيخ زوی دسلطان ابوسعيد ميرزالمسی وه چې دامير تيمور کورګان څخه په پښت کې شپږم پاچا و (۸۸۸-۹۳۷ق) اودوه ۸۹۹ق م۱۴۹۴م دروژې پنځمه په فرغانه کې دولس کلن پر تخت کېناست. او ولس کاله يې په ماوراءالنهر کې په جنګو او نورخو پرخوتير کړل څو چې د ۹۱۰ق م ۱۵۰۰م په لومړی معاشت خراسان ته راوتښتيد او د دوهمې خور په پای کې يې له محمد مقيم ارغوني څخه کابل ونيو.

بابر دلته په افغانستان کې د خپلور قبايلو شاهزاداګانو وپښتنو سره په غوړځو پرځولګياو څو چې په دوشنبې غره محرم ۹۲۵ق ۳ جنوري ۱۵۱۹م د کونړ او جندول له خواپر باجوړ راووښت او هلته يې د باجوړ دسلطان کلاونيو له (۱) چې د پښتنو دلازاکو څخه و په جنګ کې يې د ډېر زره پښتانه ووژل او دد ی له ککرو څخه په باجوړ کې يو (کله منار) جوړ شو.

په دغه وخت کې سلطان ويس سواتي دهګان د سلطان پکهل زوی د منګور په کلا کې ناست و او د معظم شاه په قول: حصار منګور تخت ګاه سلاطين سوات ست و در عهد سلاطين سوات آنجا نهايت آبادان بود بيرون واندرون اما کن غريبه ومنازل عجيبه وقصور رفيعه وآنهار نادره واسواق ودکا کين پيوسته ميداشتند وجملهٔ سلاطين سوات از اولاد سلطان جها نګيراند. ) (۲)

---

(۱) بابر نامه ۱۳۷ د بمبي چاپ ۱۳۰۸ق.

(۲) تواريخ رحمت خاني ۳۲

د بابر د یرغل په وخت کې سلطان علاء الدین سواتي، فرخ زاد میر هندا شاه منصور
د سلیمان شاه زوی او د ملک احمد تربور او ملک قره بن بهزاد منډڼ او ملک موسی بن الیسکو
بایزي او ملک موسی بن ابوبکر منډڼ او ملک بایزید بن محمود خلیل او ملک محمد ـ
خان بن سلطان ګګیانی او طاوس خان د شاه منصور کشر ورور د سوات او یوسفزو په
منځ کې مشران وو. دوی که څه هم د شیخ ملي دفتر چلاوه، مګر په ګردو پښتنو کې
ځینې داسې سازش ګران خانان او ملکان هم پیدا شوي وو، چې د هرات او هند له
امپراتورانو سره به ملګري وو او له د ګټانو او پېژندنو و وا او کړو ـ
نکوڅخه به یې درباري کلنګونه او مالیات ټولول او د بابر نو ته به یې رسول
دغه ډله ملکان او فیوډالان په شمول د خانانو، د «مرزبان» یا «سلطان» یا «ملک» یا «خان»
په لقبو یادېدل او بابر پخپله وایي چې له یوسفزو څخه ملک شاه منصور او طاوس ـ
خان د ملک سلیمان شاه زامن «درمقام دولت خواهي بودند» (۱) او د سلطان ویس
سواتي په وسیله د کهراج پر کلیو څلور زره خرواره شالي حواله شوې، چې هغوئ
شوې ور کولای. او په دغسې تحمیلاتو نه وو اموخته نو ځکه وران شول (۲)

بابر پخپله پوښا هزاده، او د منځنۍ آسیا د پاچهۍ په کومې کې روزل شوی و
نو د ده راتګ او اقتدار د لنه پردغو آزادو کوچیانو او د پوندو او دوو په زراعتي
ژوند کښې تللو پښتنو باندې هرومرو اثر کاوه. ځکه چې ده به د غسې سازش کاوه
خانان، ملکان، خان کټول او په نظامي قوت به یې پردیګانو باندې تحمیلات
ورټول. او پېښاور او د هندوستان پر لویو لارو باندې به یې خپل اقتدار د همدغو
خانانو په وسیله ټینګاوه. نو ځکه به یې دوی ته د قبیلو تیولوالۍ په لاس کې ور کاوه
او کروندې او کښتې ځمکې به یې هم دوی ته ورکولې. لکه د معظم شاه قول ورسته خان
کنجو:

(۱) بابرنامه ۱۳۹،
(۲) بابرنامه ۱۳۸،

« بر مسند ریاست و امارت متمکن شد در محال فقط ملک مأخوذه
وحراست بلاد مفتوحه وانتظام امور ملکی و بندوبست الوسی از
ملک احمد فایق ترگشت وجمیع سکنۀ دیار افغانستان ، دهگان
وگوجره هندي و نیلابي و سواتي و گبري و تینولی وکفرۀ کوهی
مطیع اوشدند. یعني او داخبره خو په تمامي عالم کې څرګنده وه
چې د خان کجو په وقت یو لک نیزې د یوسفزیوو وې .
یعني یو لک سواره ، پیاده او نیزه بازوو. او چې ګرد اوري
به یې د لښکر له نورو الوسونو هم کوله، تر دا به هم زیات شو .»
(تواریخ رحمت خاني ۱۸۳)

په دې ډول به د خان کجو ګرد سردرا ټول کړی لښکر یو لک څلویښتو زرو ته رسیدو.
(تواریخ ۱۳۹)

دلته نو د غټو غټو ملکانو او خانانو او د فیوډالیزم د تشکیل اساره ډېره روزونکې سیمه وه او بابراز د ده اخلافو د غسې شتمنې او غټې کورنۍ وروزلې او ورو ورو د شیخ ملي د فتر له سمې څخه غرو ته پنا شو . او ورو وسته چې د انګریز استعمار پر دې سیمه راخپور شو ، نو په ۱۸۶۹ م کال یې د «بندوست» په نامه د شیخ ملي دد فتر اجتماعي نظام کوربتسـه ونغاړه او کروندې یې د غسې غټو غټو خانانو ته ور تملیک کړې او مالیات یې پرو تړل چې د انو د فیوډالي نظام یوه ارته خوروونه وه .

د شیخ ملي د دفتر خطي نسخې اوس نشته ، کله چې د کرنې مځکې خانانو او بهادرانو خپلې کړې ، او د ملکیت په ډول یې واخیستې ، نو بیا یې د دفتر نسخې هم له منځه وایستې . ځکه د غه کتاب د اجتماعي ملکیت پر اساس د ګډو ژوندانه لارې چارې ښوولې .

د غه کتاب خو اوس نشته او کورټ ورک دی خو تر اوسه لا هم د باجوړ او سوات او مهابن په غرو او سردرو کې سپین ږیري او زاړه خلک د دفتر پېژني او مثلاً داسې وایي: «د غه یا هغه واقعه تر دفتر اوه کلونه د مخه یا اوروسته پېښه شوې وه» کله چې انګریزانو خپل نوی بندوبست په ۱۸۶۹ م کال جاري کړ او دد فتر یاته اصول یې بیخي

له پېښوراو کېښل ، خلك ډېر خوا بدي شول ، او دغه کار یې و شاندہ او د ویر سندرې یې وویلې . لکه د یوسفزو د تپې د باجا کلي عزیز خان چې د پښتو یو وګړنی شاعرو ، داسې ویرپرو کړچې ډېراوږدی او دلته یې یوڅو بنده راوړو :

راغه چې دې خبر کړم تا یو ده زېر وزو ر کړم

تاوان او ما لیه په ملك کې زور شوه دسو کار

ډېر تنګ شو زمیندار

خاطـر دې کـړه خوشحاله ږو ببیسـه ز ما لا لـه

لکړی ، ډمبلی را غله شروع که په «بند و بس»

منشیا نـو پـه هـوس

غصه هر چا ته ډېره کوي لـه حـد ه تېره

چې ورکړي لس ، اته اتې ، هله د سړي یار شي

بیا بل ته امېدوارشي

خپل نه دی ، دیو کس خدمت یې دی دا بس

چې پیش دچا څه کارشي وایي راوره روپۍ روکې

تا نه پیژ نم څو کې ؟

په خلقو پر یووت باج او اس یې که تاراج

منت او عـریضه د هیچا نا وري تحصیلدار

ډېرتنګ شو زمیندار ...

عز یزوا یې ظالم دی افسر یې مهتمم دی

هیڅ و نـه ما توي پـه خلکو هیڅ نه لـري کار

ډېر تنګ شو زمیندار

( بندوبس د پېښور چاپ ۱۹۵۰م)

## بی بی مبارکه:

بابر یودیر هوښیاراو دپښتنو په روحیاتو پوه شا هزاده و. ده د کابل او افغانستان پرپاچهي سکته نه کوله، ارت اوو دان هندوستان ته یې ئینگلی و. دی وایيچې دهند مځکه «قلمي» ده. خو کابل او افغانستان «سیفي» دی (۱) یعني په هندوستان کې دا ستثمار فیوډالي سیستماتیک نظام تر قلم اوحسابي دیوان لاندې چلیږي، اوله کرونکو اوزمیندارانو او سوداګرو څخه تاکلي ما لیات د «قلم» تر سیوري لاندې، په روغه ډیله جنګه را ټولیږي، خو په نورو ځایو (کابل) کې داسې نه وه. باید توره یې وهلې وای او په جګړه اوچپاو (چاپقون) اوزور یې له خلکو څخه بود کړي وای.

بابر څوځلې د هندپر اوري یرغلونه وکړل. په لومړي یرغل کې د کونړ او باجوړ له لارې ترسوات ه ولاړ اوداسې یې او کاتلنگ پرلار د ۹۲۵ ق ۱۵۱۹ م په صفره کې دا باسین ترنیلاب وراوښت. ده ولیدل چې له کابله تردې ځایه د هند پر لوېلار د غه پښتا نه پراته دي، چې هم زړه لري هم توره. اودوی له ملګری پرته د هند نیول او پردې لار تیریدنه هم ګران کار دی.

بابر د تنګا نو په کالو کې د لوی اختر په ورځ په مهور ي کې د شاه منصور یوسفزي پای تخت ته ولاړ، او هلته یې د شاه منصور لور بي بي مبار که چې «نهایت شایسته، عاقله هوښیاره وه ولیدله... نهایت پرې مین شوا و ملک احمد او شاه منصور ته یې فرمان وکښه، چې د بي بي مبارکې دوستي راسره وکانې، ع نور نوزه غرض دربا ندې نکړم... شاه منصور چې فرمان ولیده نورمنکرشو، چې مو ږ مطلقاً لور له لرو. او بر تقدیري که لور مو هم در للی ع، هم زموږ د مغو لو سره چیرې نسبت نه دی شوی دابه له مو ږ و نه شي.» (۲)

په پای کې د بابر په اصرار د غه خپښي وشوه اودبابر په قول:

---

(۱) بابر نامه ۹۲

(۲) تواریخ رحمت خاني ۹۷

«روز جمعه ۲٦ محرم ۹۲٥ ق د رولایت ما ند بش .. . بجهت مصلحت الوس یوسفزیي دختراو (شاه منصور ) طلبیده شده بود ، درین منزل خبررسید ، که د ختر شاه منصور را باماال یوسفزیي مي آورند . ) (۱)

دعوات په یوسفزو کې دابي بې مبارکې کیسې تراوسه سهین ویر ي کو ي ، او داهغه پښتنه ده ، چې دمغولو مؤرخان یې «افغاني آغاچه » بولي . د بابر لور گلبدن بیگم داسې لیکي :

« بابر » در سنه ۹۲٥ ق بجور را بجنگ گرافتند و مردم بجور را قتل عام کردند و در روز سنگور ملك منصور یوسفزي

که پدر افغاني آغاچه باشد آمده حضرت را ملازمت کرد ،حضرت پادشاه دخترش افغاني آغاچه را گرفته در عقد خود درآوردند ...)) (۲)

د بابر او یوسفزو او باجوړ پانو خوههٔ ما تې سره شوی و ، کله چې د غه خپښي وشوه ، نو بې بې مبارکه د بابر لام ته بوتللی شوه ، او ترهغو له خپل میړه سره نه کښېنستله اوویل یې چې «زه خپل قام له پادشاهه په جولی غواړم. که دپادشاه مهرباني وي زما قام دې زما جولی ته واچاوه شي. »

پادشاه ورته وویل چې «ښه پښتنې !ستا قام مې ستا و جولی ته و اچاوه ، تقصیر مې یې معاف کړ، خاطر جمع لره !)) (۳)

وایي چې بابر دملنگانو په کالو کې دشاه منصور تخت ته تللی و ، هلته د کلا ساتنو الـوونیوه او بندي شو. خودشاه منصورلور بي بي مبار که د خپلو

---

(۱) بابرنامه ۲۳۹ ، ابوالفضل اواخوندد رویزه هم د دغې پښتنې نوم بې بې مبار که کښلی دی (داولف کیرو پټانان ۱۵۹ اودیوسفي یوسفزائي افغان ۳۱۷)ددې پښتنۍورور میرجمال د بابرسره د هند په فیو لو کې ملگری و، دی اوخور یې داکبرشاه په زمانه کې په هندوستان کې مړه دي (د بابرنامې انگریزي ترجمه ۸۷۲)

(۲) همایون نامه ۱۰ دډهلي چاپ ۱۹۷۲م.

(۳) تواریخ رحمت خاني ۱۰۱

سهیلیو سره د باندې گرزېده او دا بندي یې ولید ، او پو ښتنه یې ځنې و کړه :
چې څوك یې او دلته دې څه کول؟

بابر ورته وویل : که ما له د غه بنده خلا صوې ،نوژمنه را سره وکه ، زه به
هم ځان دروښیم . بي بي مبار کې ورته وویل : څوا نه ! ځان راوښیه ، زما وعده
ده ، چې ایله به دې کړم.

بابر وویل : زه د فرغانې شاهزاده ،دکابل باچاه یم ، چې لښکرسې لاندې
پروت دی او دلته ستاسې دا حوال لیدوته راغلی وم.

مبارکه : نو ته دلته د یوه پتمن شاهزاده په توگه زما میلمه یې ! کهڅه هم سبا
بیرته د جنگ په میدان سره د ړېږو . خواوس دهر افغان په کاله کې د رو ند او
منلی میلمه یې ، اوهرو مرو به تا بیرته خپل لښکر گاه ته رسوي . ځکه پښتانه
خپل دښمن پرسم میدان په وچ زور ما توي ، او داسې دول یو میلمه ، په خپل کور
کې درو ند ساتي اوعزت یې کوي . ما ښام چې د کلي جرگه جوړه شي، هرو مرو به
ستا پت وساتي .

وایي چې بابر په درناوي او احترام خپلو لښکرو ته د پښتنو بدرگې ورساوه .
اوبه وروستو جگړو کې چې د بابر لښکر بریالی شو . نو«مبار که » د یوه جنگ
پرمیدان وسلې په غاړه د بابر د لښکرو په لاس کې ولوېده ،او چې بابرته یې بوتله
نو بابر پښو ته ور ولوېد او ورته وېي ویل : پښتنې ! هغه څه چې تاماته راو-
ښوول ، اوس به زه هغسې در سره کړم .

بابر خپلو لښکروته امر و کړ چې د غه پښتنه بي بي به په خورا احترام کور
ته رسوی ځکه چې ما پردې پېغلې زړه بایللی دی ، او د یره را باندې گرانه ده

مبارکه :زموږ قام دخپل پت لپاره ستاسره جنگېږي ، او بابر دفرغانې شاهزاده
اوس زموږ غلیم دی . نو زما په زړه کې دښمنې اودوستي نه سره یوځای کېږي
که زما دگر انښت خیال لرې ،نوزموږ د قام پت را خو ندي که . موږ آزاد
پریږده !

تردې وروسته بابر له يوسفزو سره روغه وکړه ، اولکه چې وويل شول ، بي بي مبارکه يې د بابر په لښکر گاه کې ورواده کړه . اوس نو بابر د پښتنو «زوم» شو .

وايي . چې يوه شپه بابر له خپلو جنگي ملگرو سره سلامشوره کوله ، چې څنگه دسمې پر يوسفزو باندې يرغل (چاپقون) وکاندي . دوی د سرو وپټېدله چې په نيمه شپه کې به وا کښېږي ، اوپر يوسفزو پښتنو به ناپوه يره ورځغلي ،

او دوی به ژوندي ژړاند نيسي . کله چې بي بي مبارکه د بابر او ملگرو په دې چم خبره شوه ، د دغه خبرې يې د بابر له وعدو سره سمه نه وگڼله . نو د شپې ترهغه د مخه چې بابر اوپښ شي ، اوځان (چاپقون)ته تيار کاندي ، مبارکه له کوټې راووته ، اوورېې د باندې له خوا خو را تېړنگ پسې و تاړه .

کله چې بابر په نيمه شپه د يرغل په نيت له خوبه پاڅېد ، مبارکه نه وه . او ورېې پرمخ بندو . هرڅه چې يې له دننه وټکاوه ، مبار کې ورغ نه کاوه ، او بابر وپوهېده ، چې دمنصور لورخپل کار کړی دی .

کله چې سهار شونو مبارکه راغله ، د کوټې ورېې وپرانيت او پادشاه ته يې سلام واچاوه ، اود ډېره احترام يې وکړ او ورته يې ويل : « تاز ما قام زما جولی ته راا چولی و ، نو ما دوی د پادشاه له چاپقون څخه وساتل ، او پادشاه مې د دوی له نورې دښمنۍ څخه وژغوره » (۱)

* * *

تر، لمک گجورا وروسته او کله چې بابر د يوسفزو ترسيمې ورووت او بيا يې د ډهلي سلطنت د دغو پښتنو په مرسته په ۹۳۲ ق کال له سلطان ابراهيم لودي څخه ونيو ، نو يوسفزيو او سوات والو د خپلو سلطانانو او ملکانو سره آزاد ژوند کاوه ځای ځای ملکانو اوخانانو ځينې محکې او کروندې ځانته اخيستې وې ، خوا کثرو خلکو نشيخ ملي د دفترسره سم گډ اومشترک ژوند درلود ، او هرځوځو کاله وروسته به يې خپلې

---

(۱) دغه قصه ما دستانې له سيد جبار شاه څخه اورېدلې وه ، چې دسوات دامېرسيد اکبرشاه له تبره څخه يو د روند اوخبرلوڅ پښتون و ، څه موده يې دسوات امارت هم کړی و ، اود ۱۹۵۶ م په نومبر په ستانه کې وفات شو .

کړو نډي او کو ونه دشيخ ملي پر دفتر با نديسم، بياسره وېشل، او دا قانون دخوشحال‌خان تر وخته هم لا جاري و. لکه چې په ۱۰۸۶ق کال خوشحال‌خان‌سوات ته ولاړ او اوه مياشتې يې هلته تېرې کړې، په سوات نامه کې دغه اجتماعي دودو ته اشاره کوي. خوځکه چې پخپله خوشحال‌خان دختکو داويې خاني په کومې کې لوی شوی و، او پخپله هم لوی خان او دمغلو دامېرا توری يوو کن و، نو دغه دفتري دودته په ښه سترگه نه گوري او داسې وايي :

دسو ات ملك چې د رست لايق دی دبا غونو

يوسفزيو برا بر کړ، له واغونو ......

کال په کال دملك په هيسك كا ندي باختونه

بې لښکر و پخپل ځان کا ندي تاختونه ...(۱)

# مسری خان

بابرپه ۹۳۷ق کال په ډهلي کې مړاود جمنا پرغاړه په زرافشان باغ کې ښخ شو، اوزوی يې همايون پرتخت کښېناست، چې اس کا له دخپلووړونو او نوروسيالانو سره په جنگو بوخت و. خوچې شيرشاه سوري افغان پرده بری وموند، دی دسنداوجنو بي قندهار له لوري ايران ته وتښتېد، اوشيرشاه په ۱۰ محرم ۹۴۸ق په قنوج کې دهند پاچا شو .

---

(۱) سوات نامه ته وېشتم بيت. داسې ښکاري چې دنو نسم قرن ترپايه لا دغه «وېشونه» په سوات کې وو، عنوان الدين کاکاخيل په ۱۸ مارچ ۱۸۸۲م دسوات په احوال کې وايي: دسوات زمکه ډېره زرخيزه- خو مخلوق يې دی دروېزه دوی مدام کوي «وېشونه» - يو دبل سره جنگونه - ځکه ښه نه ابادېږي ... (د پښتونخوا د شعر هارو بهار (۳۲)

تر با بر د مخه په هندوستان کې د لودیانو پښتنو شاهي کورنۍ (٨٥٥-٩٣٢ ق) سلطنت کاوه. اودوی سیاسي کړنلاره داسې وه، چې پښتانه له روهه، هند ته ورجذب کاندي او هلته یې د لویو لویو پټیو او جاګیرونو او منصبونو خاوندان کړي (١). له افغانستانه چې به هر افغان د شیرشاه دربار ته ورغی، دومره نغد یې پیسې ورکولې چې د تصوره بهرتلې وې. ده به ورته وویل: په هند کې چې زما لاس ته څومره شتمني راغلې ده، په دې کې راسره ته شریك یې، د دغه ستا معاش شو. کال په کال خپل معاش اخله (٢).

شیرشاه سوري خو پر هندوستان اودبابر پر زوی همایون پادشاه باندې بریالی شو، او په هند کې یې یو منظم سلطنت جوړ کړ، او د مدنیت اساسونه یې کېښوول. مګر ده د هندوستان او کابل سرحد هم وتاکه او پر دغه سرحد یې دره هاس کلا جوړه کړه، (٣) خو پښتانه یې آزاد پرېښوول. او کله چې خان کجو د یوسفزو مشر شو، نو به ده د شیرشاه سره سیالي کوله، (٤) خو شیرشاه د خپل قوم آزادي نه ورا نوله.

تر خان کجو وروسته د یوسفزو له سالارزیو څخه ملك مسري خان د جلال خان زوی د پښتنو مشر شو، ده له سوات تر پیا دا باسین ترلوړې غاړې او هزاره ضلع او مهابن او پکهلی پورې د خپل قدرت سیمه پراخه کړه او هر ځای یې داو بودنۍ ونه (بموونه) جوړ کړل. چې تر اوسه هم د نوګرام او د چچ د غرغېتو بندۍ ونه دده په نامه د «مسري خان بنډۍ» بلل کېږي، او د یوسفزو او غوریا خېلو ترمنځ یې د جنوبي سرحد د ځار نې لپاره د کابل پر رود «مسرى باند ه» جوړه کړه، چې د یوسفزو سیمه وساتي. د مسري خان دوخت قوي مشران ملك هندال اکازی او متهخان اکوزی او ملا براهیم الیاس زی

---

(١) عباس سرواني: شیرشاهي تاریخ ٧ پښتو ترجمه د کابل چاپ ١٣٥٤ ش

(٢) همدغه کتاب ٢٧٣ .

(٣) نعمت الله هروي: مخزن افغاني ١، ٣١٣، د ډهاکې طبع ١٩٦٠م.

(٤) همدغه کتاب ٥٧٨، ٢

او ملك تر كمال منلي او ملك بابلي وو . (۱) د دې دخپل اولس چارې په آزاده توګه پخپله چلولې او د سر اولف كيرو په قول: «بابر او همايون او كامران د پښتنو پر ضد او سمه باندې حكومت نشواى كولاى ، خو تش دونې و ، چې لويې لارې به يې ساتلې يا به يې دخپلو كورنيو جګړو لپاره قبايلي خلك په خپله ننګه كې درول . او په دغه دول نو تيراه ، وزيرستان ، سوات ، دير ، باجوړ د پا پر په وختو كې د ده د پاچهۍ تر سيمې دباندې وو . او شيرشاه دلته پرمخ نه و لاړ ، او د ده د سلطنت غربي بريدونه د بنو په سيمه كې تر اباسين پورې رارسېدل . » (۲)

---

(۱) يوسفي : يوسفزئي افغان ۶۵۲

(۲) پټانز ۱۹۶

# «۴»

# روښانیان او پیر بابا

بایزید د قاضي عبدالله اورمړ زوی چې پلا راونیکه یې دوزیرستان په کاني کورم کې اوسېدل په ۹۳۱ ق ـ ۱۵۲۵ م د پنجاب په جالندهر کې وزیږید دده چې مور یې بي بي امینه د حاجي ابوبکر لوروه، ددوی کورنی «انصاري» بلله کېده اود بایزید لقب «مسکین» و.

لکه چې تاسې ولوستل، په دغه زمانه کې پښتانه د ژوندانه د اقتصادي پوړونو یوې نوې مرحلې ته داخلېدل او په زراعتي ژوندانه لګیا کېدل او دخانخانی زړې هم مخ پرقوت وه،چې په دغسې ژوندانه کې دغتو غتو خانانو ترڅنګ ځینې روحاني وشمه خلک هم راپیدا کېدل اود تصوف اوطریقت پرغولی پاندې وګرځېده سره را ټولېدل.

د دغه عصر اجتماعي تحلیل ودواقعا تو دعلت او معلول څرګندونه اوږده څېړنه غواړي چې ترد یې د مخه زمانه لیکنو کې شوې ده ، کهڅوک غواړي چې په تفصیل یې ولولي ، تاریخ افغانستان درعصر کورګاني هند (د کابل چاپ ۱۳۴۱ ش او بابرشاه (دکابل چاپ ۱۳۵۱) اودخیر البیان سریزې (دکابل چاپ ۱۳۵۳ ش) او دروښان پاد د کتاب (د کابل چاپ ۱۳۵۵ ش) دې وګوري .

بایزید خپلو مریدانو (روښان پیر) او مخالفانو (پیر تاریک) باله، د ده په پښتو (خیرالبیان) او په عربي (مقصود المؤمنین) او په پارسو (صراط التوحید) او ځینې نورې رسالې کښلي دي او دخپل طریقت اساس یې د پیر کامل پرلاس نیوي او اتو نورو مقاماتو باندې ایښی و : ۱ـ شریعت ۲ـ طریقت ۳ـ حقیقت ۴ـ معرفت ۵ـ قربت ۶ـ وصلت ۷ـ وحدت ۸ـ سکونت . (۱)

---

(۱) بایزید روښان : صراط التوحید ۳۷

د اخوت او له هغه مقامات دي، چې د نورو صوفیانو په طریقو او نه لو کې هم وو، خو موږ ګورو چې صوفیانو ته ل دغه مقامات په انزوا او زهد دي، صفا او صلح کل کې تېرول. او د سیر او سلوک نتیجه به یې هم داوه، چې سالک به د صلح او صفا خاوند وو، له جنګه او مادي تلاښه به تښتېده، او انسان څه، چې مچ او مېږی به یې هم نه ازارول.

خو د پښتنو جغرافي او سیاسي د ریخ د هند د مغولي او د ایران د صفوي غښتلیو شاهنشاهیو ترمنځ داسې وه، چې دوی به خپل موجودیت او آزادي ونه ساتي، او د دوارو خواوو له ظالمونو او ناغېړو څخه به ځانونه ژغوري. نو ځکه د ((روښان پیر)) طریقت او تصوف هم د دغه جغرافي او سیاسي چاپېره سره سم وده کوله، او دده د تلقین او خلوت او پراتو مقاماتو تلنګ نتیجه داوه، چې په زړه ور او سر فروش او فدا کار مریدان، توره په لاس د سیاسي مبارزې ډګر ته راوباسي. روښان پخپله له خانقاهه راووت او د جګړې پر ډګر، توره په لاس ودرېده. د ده مریدانو او زامنو او نورو اخلافو هم د عمر تر پایه سره سیاست درلود، او د طریقت تر څوکې لاندې یې توره هم ملګرې وه.

د روښان پیر د تلقین او غورځنګ سیمه له کابله تر اباسین پورې او لوړې خواته ترمو اته وه، ده د عمومي تبلیغ د صراط التوحید له لیکنې سره په ۹۷۸ق ۱۵۷۰م پیل شو. دوه کال پس یې د اشنغر او آغاز پور جنګونه وکړل، خو چې په ۹۸۰ق ۱۵۷۲م د تور راغه په جنګ کې وژل شو، او تر ده وروسته یې زامنو او کورنۍ او مریدانو دده مبارزه ترډېره وخته تود ساتله.

د روښان پیر غورځنګ د دهلي کورګانیانو ته ډېر غټ خطر و، ځکه چې د کابل او اباسین لارې د پښتنو په لاس کې وې، او دغه پښتانه د روښان په تلقین د خپلې آزادۍ لپاره د دهلي د حکمرانانو سره توره په لاس په میدان کې درېدل، او د پاچهانو د لښکرو وس به نه پرې رسېده.

د دهلي د دربار سیاست داسې و، چې د پیر جواب د پیر په خوله ووایي، نو یې سید علي ترمذي (پیر بابا) چې په هند کې روزل شوی د امیر تیمور خوریې زوی و (م ۹۹۱ق) د پښتونخوا دې څنډو ته را ولېږه، چې په تنو او یوسفزو او سوات او باجوړ کې یې پښتانه مریدان کړل، او ددې شاګردانو د روښان پیر په تورونه او تکفیر لاس پورې کړ.

چې مشهور اخوند درويزه د ګدايي زوی (م ۱۰۴۸ ق) د دې ډلې په سر کې ولاړ و، او پښتو مخزن اسلام يې د روښان د خيرالبيان په مقابل کې وکښ، ازدې کتاب د سوات په پښتنو کې ډوني شهرت وموند. چې خوشحال خان هم پخپل عصر کې هلته په سوات کې فقط دوه شيه ليدل :

په سوات کې دي دوه شيزه، که خفي دي که جلي
((مخزن)) د درويزه دی، يا ((دفتر)) د شيخ ملي (۱)

روښان پير کورنی خود خوشحال خان تر عصره د ډهلي له حکمرانانو سره ډغرې وهلې، او په ۱۰۳۷ ق کې بهداد د جلال الدين زوی د نغر تر غور ځنګه وروسته ونيول شو، او د شاه جهان په امر ووژل شو. (۲)

مګر خوشحال خان په سوات نامه کې هم پر روښان او هم پر درويزه باندې انتقادونه کړي دي او د دواړو کتابونه خيرالبيان او مخزن يې هم ناد بې او هم معنوي پلو، سپک بللي دي(۳) د روښان او درويزه په دغه جګړه کې يوسفزي ګړه بوخت وو او اخوند درويزه په تذکرة الابرار کې د سرکاري سپينې بازې جنګونه يادوي، چې قابل بي بلا ميرود روښان پير بوه شهو زمر بد د منډ نو لسه امان زوخخ و، او د غوکور نيوجنګړ کرده يوسفزي په سمه او ګړو کې سره ځپلي وو، او دا هغه وخت و چې په هند کې د جلال الدين اکبر پاچهي وه د ۹۹۰ ق حدود.

---

(۱) مخزن اسلام د ښکاره خلکو لوست او لکه د سوات نامې په ۳۰۸ بيت کې چې وايي خلکو د اسماني صحيفو په څير ګانه او د جلي و، اما د شيخ ملي دفتر خلکو پټ کړی و. او خفي و.

(۲) عبدالحميد لاهوري: پادشاه نامه ۲ ر ۱۰۳ د کلکتې چاپ ۱۸۷۲ م. محمد صالح کنبو : عمل صالح ۲ ر ۲۶۷ د کلکتې چاپ ۱۹۱۲ م .

(۳) وګورئ د سوات نامې (۳۵۱-۳۶۰-۳۶۱-۳۶۶-۳۷۱-۳۷۷) بيتونه .

## کالوخان امانزی

کالو دعلي خان زوی دمیارك خان لمسی دیوسفزو له رځړو شخه و، کله چې دروښانیانو اودرویزه دمریدانو جنګو نه په یوسفزوکې ساړه شول، نو کالوـ خان دقوم مشران په جرګه راټول او ملك ایوب او ملك بابا و اباخیل یې دملاـ میرودزوی میرو یس خان سره په یوه جرګتون کې کښېنول اوورته یې وویل : چې دروښانیاو درویزه‌ګړو خو په سو ړ اره نلري، هغه د اخوندانو خپل منځني اختلا فونه دي، زموږ د قومي جرګې داکار دی، چې خپله قومي آزادي ودرنښت له پر دیو څخه وژغورو (۱)

کالو خان په دې توګه یوسفزي سره یو ځای اود خپلو قومي چاروسمښت ته متوجه کړل. کړنـدې یې ودانې کړې او هرځای یې داوړونډو نه‌دوچو ځکو د اوبو لولپار دجوړکړل، چې تر اوسه هم ډیرډنډو ونه‌دده په نامه یا ته دي. او هغه کلي چې ده جوړ کړي دي‌د کـالـ‌خـن‌کا لوـ کالوډیری په‌نو مومشهوروډ ي (۲)

## (۵)

## دا کبراو یوسفزو جګړې

دډ هلي‌ددربا رسیاست داو ، «چې خلك په جنګ‌ سره‌واچوه او حکومت پر کوه» دهند نښتلی پاچاا کبرخو تش په کابل کې خپل‌وروږشاهز اده محمدحکیم سیال با له‌او هغه یې د اپ دحمکراني په توګه دنلی و، خو د ی د ۹۹۳ ق د شعبا ن په ده و ـ لسمه د کا بل په لاحصارکې مړاو د با بر په باغ کې دخپل نیکه د څنګه ښخ شو . نو اکبر پاچا د کابل د نیو ولپا ره کنور مان‌سنګ له ډیرولښکروسره را واستاوه چې « ګرده پښتانه اوروښا نیان قتل عام کاندي» . (۳)

---

(۱) یوسفي : یوسفزئی افغا ن ۲۹۵

(۲) دغه کتاب ۲۹۸

(۳) شیخ فرید بهکري : ذخیره الخوانین ا ر ۸۳، د کراچی‌چاپ ۱۹۶۱ م

داټک او کابل ترمنځ خو تش د غه لویه لار او د پېښور ښار د ډهلي د حکمرانانو په لاس کې، نور پښتانه آزاد وو. او د چا حکم یې نه مانه، خپلو قومي جرګو د دوی اجتماعي چارې چلولې. خو کله ورمان سنګ د اټه یې له ظلمه بل څه ونکړل ، نو په ۹۹۵ ق د اکبر له درباره زین خان کوکه د کابل مرزبان شو ، او ده شاه بیګ د بګرام (پېښور) او اټک ترمنځ دلارو د ساتلو لپاره وګوماره . (۱)

بلې خواته کالو خان د سمې پښتانه سره ټول او د اکبر د لښکرو مقابلې ته تیار کړل . په ۹۹۷ ق کال د ډهلي خوا د یري لښکرې د زین خان کوکه د ملاتړ لپاره تراباسین را اوښتې وې، چې دد رو پلوو یې پر یوسفزو بریا ونه کول : اوسپړی لښکر د چکدرې پر سیمه . دوهم پر سدوم . دریم پر سوابی .

د یوسفزو تر کټیک داو ، چې ورو ورو پر شا ولاړ شي ، او اکبرشاهي غښتلي لښکر د غرو لمنو او ځګو سیمو ته ور وخېژوي ، او هلته یې ټوپنا کاندي . په دې ډول نو د پښتنو او شاهي لښکرو جګړې . د باجوړ او سوات غرو ته رسېدلې وې چې د اکبر د دربار څو غښتلي سر لښکران دلته د پښتنو په جنګي چلونو او پرځلونو کې اریان دریان پاته وو ، او ناري ، بوغاري یې د ډهلي او اګرې سرو کلاوو ته رسېدې !

اکبر پاچا په دې پوهېده، چې که د دغو خپلو لښکرو ملاتړ ونه شي ، او د دوی د جنګ پرډګر پرېښو و نه دروي ، نو به د ده د رسوایۍ نغاره پر نغښت هندوستان ووډنګېږي . ده د سمدستي مرستې لپاره د دربار دوه تنه غښتلي ځوان لکه راجه مهیش داس بیربل (د ده اوی وزیر) او حکیم ابوالفتح یې د خوا ډیرو لښکرو په قیادت را واستول چې یوسفزي تس نس کا .

زین خان هم له دې سریو ځای شوارد ، کله پر شاشي و وختل ، په چکدره کې یې یوه جنګي جرګه وکړه ، چې خپل لښکر تر ونیر اړلو پسوا ته د یوسفزو د ماتولو او ایلولو لپاره خپاره کاندي . دلته ، نوا س د یوسفزو جنګره ځوانانو ، ښه غوره

---

(۱) ابو الفضل علامي : اکبرنامه ۳ ر ۹ ، ۵ د کلکتې چاپ ۱۸۸۶ م .

او خوږه ګوله خولې ته ورغلې وه ، د اکبر دغه ډېر لوی او په تن پټ او په وسله بار لښکر د ډېرو پېسو او اسبابو سره لکه ښکلې او غوړه ډوډۍ کوتره ، د غره د بازانو منګولو ته ورغلې وه . تر ډېر یکوټي چې ور ته رسول ؛ نو یوسفزو پرې او دانګل . خو د اکبر پاچا لښکر و په جنګ جنګ کې ځانونه د بونیر پر لوی تورسک ته ورسول ، او هلته یې دوهم جنګي جرګه جوړه کړه ، او دا یې ومنله چې د کړه پې له لوري تنګ د کره کړ تر جګ کنډو ختلو اسان دی. مګر یوسفزو ځانونه په لوړو غرو او درو کې سا تل سمې او هوارې سیمې ته نه راښکته کېدل . خو جنګي بهېر یې ګړی په ګړی زیاتېده او کله چې په دېلی کې د اکبر دا تیازرو لښکر و سره دځاسخ شول ، داسې یې سره وڅېرل ، چې یو هم ژوندی پاتې نه شو دلته راجه بیربل دهندوستان لوی وزیر او حسن خان یتهنی سرلښکر ووژل شول ، او شاعر مزاجه ابوالفتح (چې تر یوه بوټي لاندې پټ شوی و) د زین خانه سره یې ډېرې ښې خلوې کړې و تښتېدل ، او درې ورځې وروسته اټک ته ورسېدل .

د یوسفزو په دغه غورځنګ او د شاهي لښکرو په پوپنا کېدو چې اکبر خبر شو په اټک کې یې زین خان او ابوالفتح سپک سپاند کړل ، چې ولې یې د ده د لوی وزیر بیربل لاش پرېښی او دوی را تښتېدلي دي ؟ پاچا خپل زوی شاهزاده مراد او زین خان وګومارل ، چې د دغې ماتې کسات د سمې له یوسفزو څخه واخلي . نو یې په کلیو کې ناسته او پلوه او بې وسلې خلکو باندې یرغلونه پیل کړل ، او د سمې دان په سمه کې یې دخپلو لښکرو لپاره په ګړي کېږ ره او لنګر کوټ او هند کې د اباسین پرغاړه جنګي کلاوې جوړې کړې ، او خپل جنګي یرغلونه یې پر یوسفزو او ډېرو ځا نیانو باندې له دغو جنګي سنګرونو څخه جاري وساتل (ربیع الاول ۹۹۴ ق فبروري ۱۵۸۶م)

د زین خان جنګونه د سوات او باجوړ پر یوسفزو له یو سره او په سمه کې تر توراه پورې له جلال الدین روښاني (جلاله د روښان زوی) سره تر ۱۰۰۱ ق ۱۵۹۲ م جاري ؤ. خو سوات ، بونیر ، باجوړ د اکبر جوغ ته غاړه نه وه اېښې ، او دراورتي په قول: که څه هم د اکبر ګومارلو سرلښکرانو او جګړه مارو د یوسفزو په غرو او سمه کې

ډېرې ونې توی او کلي یې وران کړل، خو تر پایه یې هلته پښې ټینګې نکړې او پښتانه یې د اسارت په زولنو نه کښېښودل شو ای. (۱) نو اکبر چې خپل ۵۰ تر ۵۰ زره سپاره یې په دغو خونړیو جنګو کې له لاسه ایستلي وو، خپل یو بل معتمد او ښه تښتلی قوماندان راجه تودرمل یې د لارې پر ساتنه وګوماره، او د د محمد قاسم کابلي په مرسته، د کابل لار خلاصه کړه، او زین خان کوکه یې کابل ته ور ساوه (۲)

په دغو جنګو کې چې د پښتنو مشرانو مړل د ځینو نومونو نه دادي: (۱) مردانخان د جلال-خان زوی د امان زوم شرچې قبر یې په پنجتار کې د، شاه مردان خلی، بولي (۳) دو-رانخان د مردان ورور (۴) قبول خان (۴) نیلی خان (۵) سلیمان خان د ماما خان-خضر زوی چې په پنجتار کې د «سلیمان پاچا» تر اوسه هم د ده په نامه یاد یږي (۳)

د جلال الدین محمد اکبر اوږد د پاچهي (۹۶۳-۱۰۱۴ ق) د پښتنو سره په دغه اوږ-دوږ کې تېره شوه، تر دې وروسته د ده زوی نورالدین جهانګیر (۱۰۱۴-۱۰۳۷ ق) هم په دغه ډول د روښانیانو پښتنو سره په شور خوږ جګړو کې و، او دوه واره کابل ته راغی، بیا چې یې زوی شاهزاده خرم (شاه جهان) د ۱۰۳۷ ق کال په دربهه خورداګرې پر تخت کښېناست، د شمال له خوا د ازبکو شاهانو لښکر تر هندوکشه را رسېدلی و، او د همدغه کال په شوال کې یې کابل هم د دې میاشتې کلابند کړ، شاه جهان لښکرخان مومند او مهابتخان د ۳۵ زرو سپرو سره د افغانستان پرلوري راوخو-ځول او د ۱۰۳۸ ق د اوسري میاشتې په شپاړسمه یې کابل ونیو او نذر محمد خان د غوري له لارې بلخ ته ولاړ په دغه وخت کې کمال الدین د رکن الدین افغان زوی

---

(۱) سراولف کیرو: پټانان ۲۱۸.

(۲) نظام الدین احمد هروي: طبقات اکبري ۲، ۳۹۸ د کلکتې چاپ ۱۹۳۱ م. خافي-خان: منتخب اللباب ۱، ۱۹۰ د کلکتې چاپ ۱۸۹۶ م.

(۳) یوسفي: یوسفزي افغان ۳۰.

له اټکه تر کابله پښتنو سره راو پاڅول او د ۱۰۳۸ ق د لوی اختر په لسمه يې پېښور محاصره کړ، مگر سعيد خان د پېښور او کابل حکمران د کمال لښکرې له پېښوره وايستلې، (۱) خو کاله پر له پسې د پښتونخوا پرسيمو د پير روښان له لمسو سره په اړه دوړ کې نښتي وو، او پخپله شاه جهان لومړی پلا د ۱۰۴۹ ق په محرمه کې او دوهمه پلا د ۱۰۵٦ ق په دوهمه خور کې، او دريمه پلا د ۱۰۵۷ ق په لومړی خور، او څلرمه پلا د ۱۰۵۹ ق په دريمه خور، او پنځمه پلا د ۱۰٦۱ ق د دريمې خور په څلرمه کابل ته راغی، او له اټکه تر کابله لاريې په لاس کې وه، خو دده جنگونه د اباسين له غاړو څخه تر کابل وقندهار او بلخه له پښتنو، ازبکو، صفويانو سره جاري وو.

## (٦)

### سلطان محمود گدون او باگوخان (۲) او اخوند څالاک (۳)

گدون د پښتنو له کاکړو څخه يو قوم دی، چې دا اباسين او مهابن د غرو ترمنځ د پښتونخوا د ضلع هزاره په پاسه شمالي څنډه کې اوسي (۴) د ۱۰۸۹ ق کال په شاوخوا کې د گدون له اولسه يو لوی آزادي خواه مشر سلطان محمود گدون راووت، چې هم

(۱) پادشاه نامه ۱ر۳۱٦.

(۲) د دغه نوم د هند مؤرخانو په هندي ډول بهاکو ليکلی دی. مگر يوسفزي او د بونير خلك يې باگو بولي، چې د تاريخ مرصع په خطي نسخو کې هم بهاگو دی. په قندهار هم پښتنو کې هم دا نوم (بگی = بگو) و. او د احمدشاه ابدالي د لوی وزير شاه ولی خان اصلي نوم بگی خان و. دا نوم مونږ د بگ (خدای عظيم) لغوي نوم ته منسوب دی. چې د کوشانيانو په عصر کې د خدای يا پاچانو و. يا يې معنا عظيم او ستر و. او په سنسکريت او پهلوي او باختري ژبو کې ډېره مروجه کلمه ده (د تفصيل له پاره وگورئ زما کتاب مادر زبان دری (ص ۳۴، ۱۰۷) د کابل چاپ ۱۳۴۲ ش)

(۳) دا نوم هم هندوستاني مؤرخانو مسخ کړی او اخوند سالك يې ځني جوړ کړی دی. مگر په پښتو معاصرو او ورستنيو کتابو کې څالاك = چالاك دی (پښتو سلوك الغزات د کابل خطي نسخه)

(۴) حيات خان حيات افغاني ۲٦۴ د لاهور چاپ ۱۸٦۷ م.

پوهېږي او هم دېوا خلاقو خاوندو، او ډېر شاگردان اود روږيا ن يې د تقوا او جها د اوآزادی په فکرلهسوا ته تربهابن اوچچ هزاره اوېکهلی پورې ور وزل .

دسوات له شما لي غروهغه را نيو لې د کو نړ تر نورستانه (چې پخوا کافرستان و) د اسې خلك پرا تهوو، چې د اسلام دين هلته نه و منل شوی او خلکو يې زاړه عقايد او بو تان اود ېني دودونه او دژوندا نه لارې چارې درلودې . دسلطان محمود گډون غو رځنگ هم دد غو جگو غرو په و رسره نښتو لمنو کې د اسلام د خپروني لپاره يو ((جهاد)) و، چې د ېني رنگ يې د رلود، او د ضلع هزاره او سوات په شما لي غرونو او لمنو کې محدود ی . دد غو خاي خلك د بابر تر تيريدو ۹۳۲ ق را وروسته آزاد او سيد ل له سيا سته اودر ا ر ي شخړه اود باړد زا منو او لمسو له کو رنيو جگړو او د غرو سرد ېې د پر اير پو ستون لارو . و خپله تو له سعيه او وسه يې دد غو کافرا نو مسلما نولو ته ټا کلې اودجها د پرته گرولاړ غازيان وو . ا فضل خا ن خټك د د غه مکتب فکر د يوه تکړه شا گردا خو ند غالاته ترين احوال داسې کا ږي :

«اخو ند پا سبب د حا ئا ت يوسفز يو ته ولاړ، هور ته يې له غا ړيا نوسره جها د کاوه ... ډېره ملکونه ، ډېر گو تو نه دده، له بر کته خا لي له کفاروشول . او س واړه اهل اسلا م پر ې ښيشته دي . نقل کا چې شاه جهان پادشاه فرمان وا ستا وه ، دا آيت يې پکې و کېښ: اطيعوا الله واطيعوا الرسول واولي الامر منکم. مطلب دا چې دغه عا لم پا شې د ی ، ته پکې ا ستو گنه مکړ ه ، د پا دشاه ملك لره راغه . مطلب دا چې هغه ملك د يوسفز يو د ی يوسفزيزوروراولس د ی ، مبادا د ی په پا د شا هي و نيسي . ده په ځواب ور ته و کښل چې د ا خلق که له تا با شي د ي ، له خدا يه باغي نه د ي زه او دوی شپه و روز په غزا د کفا ر و مشغو ل يو . ته پا دشاه يې . که مدد ر اوسې، گنجا يش لري . که نه ! ما څه لره له د ې سره کاره ځان لره بو لې ! » ( تاريخ مرصع ۲۹۵ )

د سلطان محمو د د غه پا څون خو په خپله سيمه کې محدود پاتې و. نو ځکه مو رخان دده نو م او کا ر نا مې نه شرگند و ي ، خو د ده د شا گردا نو له کړ و و ړ و څخه دده عا لي مقا م او د ېني غو ر ځنگ ښه ښکا ري .

د ډهلي د دربار شاه جهان ته پښتنو ډېر غړي د اکبر له ښتلي شاهنشاهي سره ښکاره وې، او هم هغه ناوړ نه چې اکبر دوره کې د پښتنو له لاسه ور رسېدلي وو. نو ځکه داکو ښښ کاوه چې بیا دغا ابوزو په زورلاس و نه وهي او پخپله د پښتنو مشران په جاه او منصب او پېسو وغولوي او هم د دوی په منځ کې نفاق و اچوي. چې هروخت د خپلو میا لانو د وهلو لپاره د پاچا ملا تړ ته اړه ي. نو د شاه جهان په اوږده پاچهۍ (۱۰۳۷-۱۰۷۶ ق) کې چې دغه سیاست پر کلکه چلېده په یوسفزو کې یل خانان او په کوزه خزاکې د لارې د ساتني لپاره د ملک اکوړي خټک په کورني کې اکه خوشحال خان خټک دا سې غټان ورو زل شول، چې په خپل منځ کې به تل نوره په لاس و هنو ته تیاري سره ولاړ و خو د ډهلي د دربار ته به گردن ایل وو.

د یوسفزو په سیمه کې د منډ زو د اتمان خیلو د مندوز و له قبیلې څخه خدوخیل یو ه څانگه او غښتلي پښه وه. چې یو مشهور ملک یې ما سوخان د زرم هجري کال په شاوخوا کې ژوندی و. او ده دزوی باکو خان خدو خیل د شاه جهان معاصر د یوسفزو مشر و. چې له پنجتاره یې د یوسفزو ملکي چلوله (۱)

باکو خان د خپل پلار له ډېر خاصیته سره سم له دربار سره لاس یو کړ، او له بلې خوا یې د سیمې د ملا یي غازیانو سره چې مشر یې اخوند لاڅ ترین و ملگري و کړه، او په دې توگه یې خان په دربارهم و پېژاند. خو چې د شاه جهان پو فرمان د ه د مشر نابه د رسمي پېژند لو لپاره راولېږل شو. او یواس د سر وزرو د زېښه سره هم له شاهي دربار ه ورو بندل شو، چې په دې ډول له سراته ترسمې او بیا دا باسين له غاړو څخه ترحسن ابداله او پکهلی پورې ده حکم جاري و. او داخوند څالاڅ په ملگري یې په اوړه غرنی سیمه کې له دومره چې د کافرانو پا چاو غزاوې وکړې. او له دې نیره ترتنا ولا گردو غرو نه

(۱) یوسفي: یوسفزي افغان ۳۰۶-۳۹۹

او سمې یې له کافرانو څخه و نیوې او یوسفزو پخپله جرګه کې سره ووېشلې نو په دې ډول باګو خان د ګردو یوسفزو په مشرۍ ومنل شو او: شاهزاده داراشکوه د شاه جهان زوی په یوه فرمان کې دی «زبدة الاشباه والاعیان، قدوة الامثال والاقران» بهاګو خان یوسفزی یې وباله او وعده یې وکړه چې که دی دربار ته ور شي، نو هرڅو نه زر چې غواړي ده ته به ورکړل شي. (۱)

باکو خان خو د سمې او غرو د یوسفزو جاګیرداري د دارا شکوه شاهزاده په مرسته له خوشحال خانه واخیستله، نو د پښتنو د دغو دوو لویو خانانو ترمنځ سیالي ولوېده (۲) او په واړو واړو د مخه لا هم د شهباز خان د خوشحال ختک د پلار او باکو خان ترمنځ خونړي جنګونه شوي وو. او په اخرني جنګ کې شهباز خان پر سر د اسې هشی وخوړ، چې په ۵ شوال ۱۰۵۰ ق مړ شو. (۳)

د همدغه کال په دوهمه خوا کله چې شاه جهان د پښتونخوا په سیمو کې و، نو د باکو خان زوی هم د دارا شکوه په وسیله د تابین منصب ومونده، او د باکو-خان او خوشحال خان د سیالۍ نغری بیا تود شو (۴) د دوی وروستنی جنګ هغه و، چې د سوابۍ د جلبۍ پر میدان په ۲۶ رجب ۱۰۷۰ ق باکو خان ماته وکړه او خپل-خانه یې قتل شو، او د مخه لا د دوی ورور سیدا خان او وراره یې داؤد ولي شوي وو (۵)

د شاه جهان په پاچهۍ کې خو په سمه او هواره کې د باکو او ختکو دغرې سره رواني وې، خو په حقیقت کې یوسفزي حکومت هم نه و. شاه جهان چې په

(۱) دغه د دارا شکوه فرمان په ۲۲ ذیقعده ۱۰۶۸ ق کښل شوی او لوړ
کتاب په ۳۱۵ مخ کې عکسي چاپ شوی دی

(۲) افضل خان ختک: تاریخ مرصع ۲۲۴

(۳) دغه کتاب ۲۶۹-۲۷۰

(۴) دغه کتاب ۲۷۹ - ۲۸۲

(۵) دغه کتاب ۲۷۳ -۲۸۹

۱۰۵۰ ق کال داته راغی. نو خوشحال خان د دغې سیمې را پور دانې ورکړ: «په سمه کې یوولس زره کوره یوسفزي اوسي چې خانان یې حبیب باکو او ظریف دي. له دوی څخه د رړ نیم زره سپاره راوزي او د سوات د یوسفزو هلکان کچې، حمید او کاچو دي چې پنځه زره سپاره لښکر را خوځولای شي.» (۱)

له دې څخه د سوات او سمې د یوسفزو د کاملې خپل اختیارۍ حال څرګندیږي خو د احوال تش د شاه جهان تر پېښدي کېدلو ۱۰۶۸ ق پورې دی، کله چې اورنګ-زیب عالمګیر خپل پلار ونیو او ورور دارا شکوه یې سر کړ د ګرد هندوستان غښ واکمن (شاهنشاه) شو، نو ده د پښتنو سرټکولو ته هم ملا وتړله. او لومړی پلا یې د باکو خان غاړې ته لاس وروا چاوه، چې هغه د خپلو پنځو زرو لښکرو سره د پکهلي د چهاچل کلا نیولې وه. په ۱۰۷۷ کال د کابل صوبه دار میرخان د مېرزو ولاړو شوو افغانانو سره ونښت، خو چې پاچا خپل زوی شهزاده محمد اعظم د ملو زرو سپرو او ډېرو لښکرو سره راواستاوه (۱۰۷۸ ق). (۲)

اوس نو باکو خان مړ شوی و او نورو پاتو ملګرو یې خپل ګرد، زور د شړوله کافرانو سره پر جهاد او د مغو پر مسلمانانو لوا چولی و، له کابله نور لښکر هم د شمشیرخان په قیادت راورسید. په سمه کې خو ځایه یوسفزي پرسرټکول شول، هند او شاهباز ګړ، شاهي لښکرو وران کړل، بیا یې نو د محمد امین خان په قیادت پر باجوړ او سوات پر یدوکړ او ډېرې ورانۍ یې پېښې کړې. خو د پښتنو له ډېرې زغمې او هڅو ته راستانه شول (۳) (۱۰۷۸ ق).

خوشحال خان په سوات نامه ۱۶۹ بیت کې یوې واقعې ته اشاره کوي چې: کوم بل چا پر خان د مغل شاهزاده شجاع نوم کېښود او یوسفزي یې پر ځان راټول کړل، د اټک فوجدار کامل بیګ دی د شوال په میاشت ۱۰۷۷ ق د هڅې په

---

(۱) دغه کته ب ۲۷۸

(۲) منشي محمد کاظم: عالمګیر نامه ۲ ر ۳۵۰، د کلکتې چاپ ۱۸۹۸ م.
منتخب اللباب ۲ ر ۲۳۰

(۳) یوسفزي افغان ۳۱۳

مقابل کې د سیند پر هاېلاغاړه سره تاش په تاش کړل. او هغه د شجاع په ننه را وتلی سړی
سوات ته وتښتېد څو چې هوړي سراوښخ شو. (۱)

د شاه جهان د بارد پښتنو د ځېر لولپ ره د زین خان په حکمرانی په باجوړ او سوات کې لښکري چوړنې جوړې کړې، او د شهباز خان خټک، امداد، د زوی خوشحال خان په وسیله یې د گردو یوسفزو څخه دولس زره روپۍ مالیات اخیستل. (۲)

تردې وروسته په امان زو کې جېون خان او د دزوی مسري خان او صاحب خان د مسري زوی او په خټکو کې مشهور توزیالی شاعر خوشحال خان د ایمل خان مومند او دریا خان افریدي په ملگري له اټکه ترخیبره داسې حال جوړ کړ، چې د اورنگزیب لښکراه حاکمان په خان پورې اریان شول. نو پخپله پادشاه د ځپلو ښتلو او بې شمار وېو خونو او وسلو او توپونو سره د پښتنو مقابلې ته راوهي شو او په دوهمه خوړ ۱۰۸۵ ق سره ۱۶۷۴م یې پرحسن ابدال وارول. او تر ۱۵ شوال ۱۰۸۶ ق پورې یې له پښتنو سره سخت جنگونه وکړل.

په دغه وخت کې سوات او د یوسفزو سمه اوغړ، د اورنگزیب له حکمه آزادوو. څکه چې د همدغه کال ۱۰۸۶ ق په دریمه خور کې خوشحال خان له اکوړې څخه سوات ته ولاړ، او هلته یې شپږ اوه میاشتې د یوسفزو سره د دوغې په خبرو اترو کې تېرې کړې، چې گرده پښتانه د اورنگزیب سره په مېرځ کې ودروي (وگوری د سوات نامې ۸۷ - ۸۸-۸۹-۹۰ بیتونه)

خوشحال خان په سوات کې بامي زي، خواجو زي یوسفزي یادوي (سوات نامه - بیت ۳۵) چې بامي زي د دخسر خیل وو، او له هغو څخه ملو خان د ه نه لور وا ده کړه. چې د صدرخان مور وه (بیت ۶) نور نوی ملکان یې اودل، همزه، نا لی او د کاچو یډ لمسی و (بیتونه ۱۷۹ تر ۱۸۲) خو تر ټولو لکړه بوشیخ و، چې میان نور نومېده او داخوندرویز پیر و او د روږی غوندې و، د دې شیخ نما او نا پوه اخونده

---

(۱) افضل خان: تاریخ مرصع ۲۹۱

(۲) شیر محمد خان گنډه پور: خورشید جهان ۱۹۹ د لاهور چاپ ۱۸۹٤م.

سره میاخان، مانکی، سنګر څوندې ملکان هم ملګري وو (بیت ۹۲۵) دوه مفتیان یې
د راودل چې الله داد او دوست محمد نومېدل (بیت ۲۱۲) داګرده د لنګر خټک په کلي
کې دخوشحال خان مناظرې ته راغلي وو (بیت ۲۶۰).

داسې ښکاري چې دسوات پروګړیو باندې دغو ملکانو او اخوندانو حکمراني
کوله، او د خان خانی دوره هم په دغه ډول شروع شوې وه، چې یوسفزیو په کلو-
او بانډو کې په کرهڼه لاس پورې کاوه، او نورو ګړیو هم د کوچاوېو نده ګلوی
په حال کې وو، او کله چې به د اورنګزیب د ګومارلو حاکمانو لاس بر شو، نو
به یې تر باجوړ او سوات پردوی باندې زغل کاوه، ددې غیلې او ګورمونه به یې
تارا کول.

دلته دا هم د هېرولو ور نده، چې دسلطان محمود ګدون د مجاهدینو د ډلې پاتو
ملګرو په شمالي غره کې د اسلام خپرولو په نامه له کافرانو سره جهاد کاوه، دوی
به کله کله د سمې د خلکو سره په سیاسي او قبیلوي اړ دوړ هم ننوتل. مګر د ډهلي
د دربار په دې خوښ و، چې دغه «غازیان» پخپله غزا په غرو کې بوخت وساتي،
چې د سمې په سیاسي شخړو کې ګډ نشي، او د خوشحال خان، دریاخان، ایمل خان
غوندې درانه پېټي د دربار پر اوږو وانه چوي.

# اخوند پنجو

کله چې دلودیانو جنډه لا د هند د ډهلي د کلا پر سر رپېده، سیدغازي نومی
متانه سړی له هنده راغی او د یوسفزو د یار حسین په کلي کې د کجوخان تر سیوري
لاندې اوسېده. ده ته په ۹۳۳ ق خدای یو زوی ورکړ چې نوم یې سید عبدالوهاب و،
او کله چې د ده پلار غازي په ۹۸۹ ق په اټک کې مړ او ښخ شو نو عبدالوهاب
په ۹۹۰ ق د پېښور لویدیځ کلي اکبرپورې ته راغی، د شریعت او طریقت هنماشو او
ځکه چې د اسلام د پنځو بناوو پر عمل یې تل خلک پاڅول، نو په «اخوند پنجو» مشهور شو
مریدان یې له اټکه تر کابله خپاره وو او د خان خانی په دوره کوونکي نظام کې یې
ښه پاملرنه او لوېښت درلوده، هغه چې دغه په شهرت نو یې م کال په دوشنبې ۲۷ رمضان
۱۰۴۰ ق وفات او په اکبرپوره کې ښخ شو. مفتي غلام سرور لاهوري وايي چې دی د
علم په خپرونه بوخت و، په پښتو او فارسي او هندي به یې خبرې کولې، په فارسي

يې شعر وايه دحنفي فقه کنز الدقايق يې له عربي ژبې څخه په پښتو منظوم کړه (۱) او شيخ فاضل خدرزي چې په بيلوټ کې د پښتنو مشر و، د عبدالوهاب مريد شو. او دده نفوذ دونې ډير و. چې په ۹۹۳ ق کله چې اکبر پاچا دوري راغلی و، ده اکبر پوره کې يې ليدلو ته تللی او ارادت يې ورته ښکاره کړی و (۲)

داخوند پنجو دوه وروڼه عبدالرحمن او عيسی هم پېژنو چې عيسی تأليفونه لري او ښايي هغه شاه عيسی وي، چې د سوا تنامې په ۳۵۲ بيت کې ياد شوی دی. مگر تر اخوند وروسته ده، پرمسند عبدالرحمن ناست و (۳) اخوند يونس چې د پېښور په ښار کې شيخ دی، هم د پنجو مريد او شاگرد و.

هم مجاهد او هم مؤلف

د يوسفزو د سمې او غرونو په تاريخ کې داخوند پنجو يو مشهور شاگرد اخوند ډالاک او دده ورور اخوند مبارك (عمر) ستمه برخه لري، دوی په اصل توغه د ترين له قومه وو، چې پلار يې له افغانستانه راغلی او د ختکو په نري کې د خير آباد شمال مغرب ته ميشته و. زامن يې يوسفزو ته ولاړل (۴) او په چغرزو، اباسين، کابل گرام، هزاره او بونير کې يې د جهاد ډنګورونه ووهله، چې پکهلی، الائی، ننډهار او چيلاس د کوهستان خلک اسلام ته راوا ړوي. ځکه چې د غه خلک د دوماتومي حکمران تر ورغ لاندې د مسلمانانو سره جنگېدل. داخوند ډالاک سره د خوشحال خان ورور جميل بيگ د ختکو له خوا او عمرخان د شيوې او باکوخان د پنځتار او اخوند شاه د اند دهوتي مردان او يارخان د غرغښت هم ملگري وو. شيخ رحمكار کاکا صاحب خټک يې هم مل و (۵)

داخوند ډالاک په خوله گرده د سمې او غرو يوسفزي او نور پښتانه د شمالي لورو

---

(۱) خزينة الاصفياء ۱ر۹۷م. د کنزالدقايق توضيح د ۱۹۲ بيت په حاشيه کې و اولی ش.

(۲) احمدشاه رضواني: تحفة الاولياء ۳۴م د لاهور چاپ ۱۳۲۱ ق.

(۳) درويزه: تذکرة الابرار ۱۸۵-۱۸۸.

(۴) افضل خان: تاريخ مرصع ۵۹۲ و

(۵) تذکره ۱۳۲، تحفه ۳-۲.

سیمو اله کفارو سره په غزا بوخت وو او دسمې پرخوا د ډهلي حکمرانانو تش د کابل لوېه لاره ساتله. د پښتنو په داخلي چارو یې اوږه نه درلوده (۱) خو د اورنګزیب په زمانه کې چې دده په چارو کې لاس وهنه شروع شوه، د باکو او ښالاك له پښتنو سره په ۱۰۷۷—۷۸ ق هغه جنګونه وشول، چې د سخه موخبرې پر کړي دي.

ښالاك د علم او تدریس او تالیف خاوند هم و. په حنفي فقه کې یې فتاواې غریبه کښلې ده او دوهم کتاب یې بحرالانساب نومیږي چې د افغانانو او ترکانو او سیدانو او د طریقت د شیخانو نسبونه پکې بیان شوي دي. دریم کتاب یې غزویه پر هغو غزاوو کښلی دی، چې دده په قیادت د بونیر او هزاره او چملاس په کوهستانونو کې شوي دي څلورم کتاب یې د مناقب اخوند پنجو په نامه د خپل مرشد سید عبدالوهاب په ستاینه کې کښلی و. چې ټول سره په فارسي ژبه دي، (۲) او داسې ښکاري چې ښالاك د اسلامي علومو او فارسي ژبې تکړه عالم و. چې په کشف او کرامت یې شهرت لاره، او خوشحال خان خوندې نقاد او مقتدر عالم او خان به هم دده په فتواعمل کاوه او اخوند ملا جمال غونډې تکړه عالم دده شاګرد و (۳)

افضل خان خټك خپل تاریخ مرصع کې د پښتنو اولیاوو څخه د اخوند ښالاك مناقب: «قدوهٔ محققین او زبدهٔ علمای دین» په نامه په پنځوسو کې او د یوسباك کرامات په دوو مخو کې کښلي دي (۴)

د اخوند ښالاك په مریدانو کې چې هم مجاهد و، او هم شاعر او لیکوال د اسلامي علومو پوهاند، دا سرې ملامست زمند نومیده چې هدیره یې تراوسه دشنوا رو په غر وکې مشهوره ده. ده په پښتو یې یو کتاب د «سلوك الغزات» په نامه کښلی دی، چې فقط یوه نسخه یې د کابل په خطي کتابتون کې شته.

---

(۱) محمد کاظم: عالمګیر نامه ۲ ر ۱۰۳۱ .

(۲) تحفه ۳۱ .

(۳) تاریخ مرصع ۵۹۳ .

(۴) د ښه کتاب ۵۶ - ۵۹۲ .

دملا مست زمند دمړ ینې تاریخ د ۱۱۰۰ ق ۱۶۸۸م کال په شاو خوا کې اټکل کولای شو. دی په پښتو نثرلیکلو کې د پېرروښان د سبك پیښې کوي، پخوانو آثارو کې دخپل عصر ډېرې پېښې او واقعې اوچهادونه بیانوي اوځینې په نظم هم سره پېیو دي. دنو دمالو او مړنوپا دونه کوي. دپښتنو دشرانو او جنګیالي ښېي. کله کله غزل یا قصیده یاخلور پخه هم وایي. وېرنې، ستاینې، غندنې لري، او دمنظومو په پای کې خپل نوم مست را وړي په یوه قصیده کې وایي:

اوس غازیان دي ډېرخښې، صافي، شینواري — چې غزا همیش پرنیت دعندالله کا

اوسردار د دوی اخون غازي خالا ك دی — که پې خدای عمر دراز، غزت نګا کا

له غز ا په یې ا نشا کړ م خو یپا نه — که مددرا سره حق په هره ساه کا

«مست» شاګرد دا خون جیو غا زي خالاك دی

چې همیش پر کفر غېر سپا بیګا ه کا (۱)

داخوند خالاك په ملګرو کې دشیوي عمرخان زخې، بېوخان، اخوند یونس د تورډهېري خاو صاحب، اودهوتي مردان اخون صاحب ډنډور هم شامل دی (۲)

# (۷)

# دهندباېرې کورنی لمرلویده، اودافغانانو بیا لمرخاته

داتلسمې میلادي پېړی لو مړي کلو نه وو، چې دا ور نګزېب دمړ ینې سره دډهلي د با برې کورنۍ د پرتم پېرغ پر کښته کیدوو. دکندهار پښتانه دمېرویس-خان هوتك په مشری آزادشوي وو او د کابل اواتك ترمنځ هم تش دنه او په لار اوور څرمه کلي د کابل او پېښور دحکمرانانو په لاس کې و، چې دنا درشاه افشار دپرغل هښمه پرپښتو نخوا تېره شوه، د ۱۱۵۰—۱۱۵۲ق تر منځ یې نا صر خان د کابل او پېښور حکمران چې دډهلي له درباره ګومارلی شوی و، مات کړ، دخیبر

(۱) د تفصیل لپاره وګوری ۀ: پښتانه شعرا ۱ ر ۷۷ د کابل چاپ ۱۳۲۰ ش.

(۲) تحفه ۳۲.

پښتنو ته یې ججه ورکړه (۱) خو چې بېرته له هنده خراسان ته ولاړ، خو یوسفزي ترسوا ته پرخپل حال آزاد پاته وو، خپل ملکان او جرګې یې درلودې .

تاسې په تیرو مخو کې ولوستل: چې دګردو پښتنو ذغرې دبابرد کورنۍ سره له بابره تر اورنګ زیبه دوه سوه کاله پرله پسې په قومي او دیني او کله کله تش په سیاسي توګه جارې وې (۹۱۰-۱۱۱۸ق) په دغو هنګامو او تودو اوسوړو جګړو کې د بهادري عناصرو د پیدا کیدو اوودې سره یوځای د د غو سیمو پوندو او پرګلیو او بانډو بانډې میشته پښتنو برخه درلوده . او د غښتلیو او پرځاړو ناستو خانانو اوشاهزادګانو له خوا پرسرتګول کیدل . د بابري اوباداري جنګې له هراته تراټکه پر پښتنۍ نخوار پیدې،او د قندهار دسدوزو ابدالیو مشرانو په هرات فراه ، قندهار ، ملتان کې د خانۍ مرکز ونه جوړ کړي وو ، چې له دوی څخه احمدشاه ابدالي د هرات دسدوزو مشرزمان خان زوی د قندهار د شیرسرخ په ملي جرګه کې پهپاچهي وستل شو (شوال ۱۱۶۰ق ۱۷۴۷م)

د ابدالي احمدشاه سیاست داو ، چې ټول خراسان او افغانستان (پښتونخوا) له آمو او دامغانه تر دهلي او کشمیره سره یو ټاټوبی ځای کړي، او پر هندوستان هم څه جنګه یپاوړ یوي : کومه چې د بابر پهلاس را کوزه شوې وه ، احمدشاه پوغ داو :

ټوله یو دي که غلجي که ابدالي ي ټوله یو دي که غلجي که ابدالي ي — خپله هغه چې یې دزړه پښتونه صفاده
پښتانه دي ټوله لاس سره یو کاندي چې مونږ غزاهر لوري شاه وخواده (۲)

احمدشاه چې یو پښتون پاچاو ، د فرید (شیرشاه سوري) او حمید (شیخ حمید لودي د ملتان پرم په یاد ، تهواره د هند پر خوا تر اباسین واوښت ، دی په خپله وایي :

د «فرید» او د «حمید» دور به بیا شي چې زه وکاندم پر هر لوري تاخته و نه (۳)

---

(۱) فیریر: دافغانانو تاریخ ۷۶ د لندن چاپ ۱۸۵۸م

(۲) د لوی احمدشاه باباوینا وې ۲۹ د کابل چاپ ۱۳۱۹ ش .

(۳) دغه کتاب ۲۱ .

احمد شاه په دغه فکر او لوړ عزم د ګردو افغانانو منلی شوی او ټاکلی مشر شو او هر کله چې به د دغه نیت په سفر د پېښور پر لاره تېرېده د ګردو پښتنو څخه به یې لښکر د ځان سره کول او په دغو کې به د سمې او غره یوسفزي هم و، شیر محمد ګنډاپور داسې وایي:

«اما در عهد پادشاهی احمدشاه، در دوران که پادشاه افغان بود، پس همه اقوام بخوشی دل اطاعت نمودند وسرداران ایشان (یوسفزئی) همرکاب (۱) پادشاه بغزو هندوستان رفتند وخدمات وغزوات شایان بعمل آوردند .....» یو انګرېزي مؤرخ او سیاست مدار الفنستون چې د (۱۸۰۹م(۱۲۲۵ق) په پسرلي د شاه شجاع دربار ته په پېښور ته راغلی د دغه واقعیت په دې الفاظو راڅرګند وي:

«د احمدشاه سلوک او مینه محبت د پښتنو له هغې قبیلې سره دومره زیات و چې یوې قبیلې به د دغه برخلاف څه بغاوت هم وکړ نو هغه به هم یې هغوی سره د جنګ کولو نه ګرېز کولو چې هسې نه چې د پښتنو ځان ومال ته نقصان ورسي یوسفزو، ترکلانو ګیګیانو، اتمان خیلو، برمهمندو، د هشتنګر محمد زو، خلیلو مهمندو، افریدو شینوارو، اورکزو، داؤدزو، ختکو، بنګښو ته به هغه (بردراني) ویل او هم دومره مینه به یې هغوی سره کوله لکه چې به یې د خپلې قبیلې سره کوله.» (۲)

یوسفزي پښتانه خو په اصل کې د سړه بن له ځانګې څخه دي چې د پښتنو له څلورو برخو یوه غټه ځانګه ده او د قندهار سره یې یا اودالي (= دراني) اقوام هم له دغې ځانګې څخه دي. کله چې په نهم هجري قرن کې (لکه د مخه چې څرګنده شوه) یوسفزي کابل ته راوختل، نو یې د کابل د سیمې د لوړوالي په سبب بر پښتانه یا «بردراني» وبلل. او بیا چې دوی له کابله ورښکته شول او د پېښور او اټک او سوات تر منځ په سمه او غره کې مېشته شول، نو دوی په هغه نامه «بردراني» یادېدل او احمد شاه هم په دغه نامه دوی خپل ورونه او د پښتنو د لوی اولس یوه غښتلې اوډ رنه ځانګه بلل، او د قندهار په ښار کې

---

(۱) خورشید جهان ۹۶ ۱

(۲) ایل فنستن سلطنت کابل د لندن چاپ ۱۸۳۹م د قاضي عطاء الله د پښتنو تاریخ په حواله ا رم ۱۰ د پېښور چاپ ۱۹۳۷م .

چې احمدشاه په ۱۱۷۳ ق ) ودان کړ ، یوبازاراودیار شرقي شمالي برخه د « بردراني » په نامه دیوسفزو اونورو سرپوطو اقوامو د هستو گنې لپاره وټاکله شوه ، چې تراوسه هم په دغه نامه یادیږي .

لکه چې تاسې دمخه ولوستل ، یوسفز و د هیڅ پاچا دمطلق اطاعت جـوغ برخپله غاړه نه وابښی . مگر کله چې احمدشاه ترخوبره را تیرشو ، گردوپښتنوتر سوا ته او باجوړه د ی ومانه ، اوده هم دد یسیمې قومي غټان لکه فیض الله خان خلیل اوعبدالصمد خان محمدز ی داشنغر ، اوفتح خان یوسفز ی او ار سلاخـان مومند اونور یې دخا ن سره کړل اوله یوسفزو څخه یـې یـوه پیغله چې فـاطمه نومیده خپل زوی تیمورشاه ته په ۱۱۸۳ ق واواده کړه ، چې وروسته دشاه زمان مور او دافغانستان ملکه وه ، اودفرمانو پسه سر کې بـه یې دا بیت لیکلی و :

سپهر رشك برد از بلندي جا هم　　　　کنیز فاطمه ومادرز ما نشا هم (۱)

دتیمورشاه په دربار کې هم موږ ددغې سیمې د مشرانونو نومونه اروو ، چې په جنگواو سفرو کې دپاچا ملگري د ي . لکه په ۱۱۸۷ ق کال چې د سکهانو په جنگ کې د زنگي خان دوا نی سره شاه و لیخا ن دفتح خا ن کما ل ز و ی او بهادرخا ن د فیضطلب خا ن محمد زي اشنغري زوی او د یـوسفزو نـورمشران ملگري وو (۲) او د غه بها درخا ن هغه څوك دی ، چې د د نیکه عبدا لصمد خان داحمدشاه با با ددوبارغې سړی دسرهند حکمران و . اودسـرهندو پـه جنگ کې شهید شوی و. اودحسیني په قول « امیر صاحب سخاوت بود که سخاوتش زبان ز د خواص وعوام است وپانصد سوار همراه رکاب میماند ( ۳ )

دیو سفزو لښکرخان کمال زوی هم د پنځو سو و سپرو نیزه والومشرو او بل ظفرخان د فتح خان یوسفزي زوی له حسن ابداله ترکشمیره حکمران و ( ۴ )

---

( ۱ عزیزالدین وکیلي : درة الزمان د کابل چاپ ۳۳۷ ش .

( ۲ ) امام الدین حسیني : تاریخ حسیني ۱۷۹ دکابل خطي نسخه .

( ۳ ) دغه کتاب ۲۲۸ - ۳۲۵ - ۳۸۰

( ۴ ) دغه کتاب ۳۷۰ - ۳۹۰

حسیني د شاه زمان په اردو کې د دغو ټبرو پښتنو د لښکرو شمېر تر باجوړه اتلس زره ته شوي ، چې گرده ماليه يې اوه لکه روپۍ ورکوله (۱) او يوازې يوسفزي دوه زره دوه سوه سپاره د هند د سرحداتو پاسنۍ او ښارنۍ ته لېږل چې د سوات او بونېر جنگي زلمي به هم پکې وو . (۲)

په ۱۲۰۳ ق ۱۷۸۸ م چې آزادخان د حاجي کريمداد بامېزي عرض بېگي زوی د کشمېر افغاني حکمران و . د ده سره څېنې د سوات يوسفزي هم ملگري وو . مرحوم سيد جبار شاه د سوات آخرني سيد او معزول امير به دا لنډۍ ويله ، چې د سواتي پښتنو پيوستون له افغاني حکمرانانو سره ښيي :

د سوات پرغاړه مې يار بايللود اوس د آزاد ترخنگ روان کشمير له څمه (۳)

د احمد شاه لمسی شاه زمان يوه عالي همته پاچا و ، د ده غوښته چې گرد شمالي هندوستان بيا د احمدشاه په څېر له کابله سره ونښلوي او انگريزان چې د هند له شرقي خوا و څخه د ترخه درياب پرغاړو د سوداگرو په جوله راختلي او د خپل استعمار او ناجايز اقتدار جال يې غوړاوه بېرته وشړي .

د ده د دغه مقصد لپاره د دهلي د پاچاهي شاهزادگانو سره مفاهمه وکړه ، او د پنجاب سکهان يې وپوهول ، په لاهور کې يې د دوی مشر رنجيت سنگه هم د ځان ملگری کړ او په ۱۲۱۳ ق (۲۵ اکتوبر ۱۷۹۸ م) د پېښور پر لور وخوځېده.

لارډ لزلي دانگريز گورنر جنرال چې په کلکته کې ناست و د شاه زمان له دغه ورځنگه وېرېده او خپل ټول استعماري قوتونه يې دې خوا ته را وگومارل . په خاصه توگه بيا دغه غورځنگ هغه وخت ډېر تکړه او ډېرې ورشو ، چې د ناپليون استازي د شاه زمان دربار او په شرقي هند کې د ټيپو سلطان شهيد دربار ته راورسېدل او دانگريز د پېشرفت د مخنيوي لپاره سياسي خبرې اترې رواني وې.

---

(۱) امام الدين حسيني : تاريخ حسيني ۱۷۶ د کابل خطي نسخه

(۲) وکيلي : درة الزمان ۸۷ - ۳۰۱

(۳) دغه لنډۍ ما پخپله د سيد جبار شاه له خولې په سنه ۱۹۵۰ م په پېښور کې اورېدلې وه ( حبيبي )

انګریزانو د خپلو جاسوسانو په ذریعه د پنجاب د سکهانو او د ډهلي د باري شاهزاده ګانو او د کابل د دربار ته راغلي ولي وه، او د شاه زمان د غورځنګ اطلاعات یې پرله پسې انګریزانو ته ورکول .

شاه زمان خوښیدنه هیواد کې هم د خپلو ورونو او درباري مشرانو په اختلاف کې نښتی و. خو د هند افغاني متصرفه ولایتونه یې هم هیر نه وو، دی څو واره تر پنجابه ولاړ، خو د داخلي شخړو په سبب بیرته راستون شو. د انګریزانو ګورنرجنرال ته په ۶ جون ۱۷۹۹ دا خبر ورسید : چې شاه زمان د خپل درباردوه مشران وفادارخان او شیر محمد خان سره پخلا کړل او خپل موروثي ملک یې له اټکه تر هراته وفادارخان ته وسپاره. او له اټکه تر ډهلي پورې یې شیر محمد خان وګوماره او ورته یې وویل: «د وباواز لاهور سبب نفاق همامها برګشته امدیم واین معنی برمزاج ما بدولت خیلی ناګوار می ګذرد . تاوقتیکه در انجا نرسم، خوشی خاطرنمی شود.» (۱)

انګریزانو لیدل که شاه زمان د افغانستان له لښکر سره د پیښور پرلار اټک ته راواوړي، دلته ګرده پښتانه او یوسفزي تر سوات او ورسره دریږي او د احمدشاه بابا د پاني پت داستان بیانوي کیږي. نو یې په سیاسي چل ول لاس پورې کړ او خپل سفیر جان ملکم یې ایران ته واستاوه، چې فتح علي شاه قاجار د خراسان او هرات پر خوا د افغانستان پرسیمو راوګوماري او شاه زمان له پیښوره د هرات د ساتنې لپاره بیرته پر شا ولاړ شي. د استعماري انګریزانو دا چل کامیاب شو او په افغانستان کې خانه جنګي ولویده . او غلام محمد هندوستاني درویش چې د کمپنۍ په لمسون قندهار ته راغلی او هلته یې دیر قوي پلي سرداران د شاه زمان په مخالفت راپاخولي وو، هم پخپله

(۱) پر ما تماشرن: فارسي اخبارات ومراسلات د ډهلي چاپ ۱۹۶۶ . دا کتاب د هغو راپورونو مجموعه ده چې د انګریزانو د شرقي هند د کمپنۍ جاسوسانو په ۱۷۹۶ تر ۱۸۰۳ م پورې د ګورنر جنرال دفتر ته ورکول . او دغه راپور نمبر ۱۲ د کتاب په ۳۸۳ مخ کې مفصلا درج دی. او هم دغه کتاب د انګریزي استعمار تشویش د افغانستان له خوا او د شاه زمان له لښکر کشۍ څخه ښکاره کوي.

دسیمه کې بریا لی شو او شاه زمان هغه سرداران مړه کړل. پخپله دوویش خو بېرته هند ته وتښتېد، مگر په افغانستان کې یې داسې اله‌گوله واچوله، چې شاه‌زمان ولیول شو او ړوند کړ شو (۱۲۱۵ق ۱۸۰۰م)

تردې حادثې وروسته افغانستان څلوېښت کاله په خانه جنگۍ گرفتار و، او سکهانو دوني قوت او جرائت وموند، چې تر اټک را تېر شول، دخیبر تر خولې پورې راورسېدل (۱۸۱۸م) اوس نو ددې مځکې اقتدار دسکهانو او بارکزو سردارانو په لاس کې و، خوصلا هم یوسفزي او هم دسوات دجگو سیمو پښتانه دسید احمد بریلوي دمجاهدینو سره ولاړ وو. دغه ډله هندي مجاهدین په ۱۲۴۱ق ۱۸۲۶م د قندهار او کابل له لارې پېښور ته راغلل او پښتانه له دې جهته ور سره ملگري شول، چې دوی دجهاد اعلان کړی و. دوی له سکهانو او د کابل دسردارانو سره د ځرې ووهلې او د پښتنو دهوداورواج پر خلاف یې کاوونه شروع کړل،

څو پښتانه او د سمې او غرو یوسفزي يې ځنې بېل شول لو مړی خو د دوی سره د پنجتار فتح خان د کوټې سید امیر پاچا او دزیدې اشرف‌خان او د هنډ جادي خان او د باجوړ امیر محمدخان ولاړوو. او سید احمد بریلوي هم په جنگو کې پرسکهانو او کابلي سردارانو بریالی و. د بونیر او سوات په پښتنو کې هم وگرزېد او هغو هم دی د اسلامي جهاد لپاره په خپل امارت ومانه (۱) او دوه کاله یې په پېښور او پنجتار او هارکې تېر کړل، او څو جنگونه یې د پښتنو په مرسته له سکهانو او کابلي سردارانو سره وکړل، څو چې د ضلع هزاره په بالاکوټ کې د ۱۲۴۶ق په ذیقعده (مئ ۱۸۳۱م) کې دمجاهدینو مشران لکه سید احمد او مولوي اسماعیل او نور دسکهانو په جنگه کې شهیدان شول. او هغه مجاهدان چې ژوندي پاتې شوي وو دباجوړ په سمه او چمرکند کې دپښتنو سره اوسېدل او د هند او افغانستان د آزادۍ غوښتونکو غورځنگونو او ملي مشرانو سره یې پیوستون درلود، او دا لمجاهد او شغله په نامه یې کله کله په فارسي، پښتو، اردو جرېدې هم خپرولې.

(۱) غلام رسول مهر: سید احمد شهید. ۳۴ دلاهور چاپ

پنځوس کاله بیا یوسفزو او نورو پښتنو په سمه او غرو کې تر سوات، بونېر او باجوړه
د پښتنو الی پر دود دستور برابر آزاد ژوند کاوه، خود مقامي خانانو او پاچایانو تر
جوغ لاندې وو. کله به یې د سکهانو ظالمانو حکمانو او کله یې سردارانو ته مالیات
هم ورکول، څو چې په ۱۸۴۹ م انګرېزانو د سکهانو او سردارانو کمېله ورټوله
کړه، پېښور یې ونیو، او د یوسفزو سیمه یې هم لږو ډېر د انګرېزي استعمار په سیمو کې
را کښې یوسته.

## (۸)

# یوسفزي او انګرېز، د سوات نوې امارت

د سوات سیمه د نونسم قرن په لومړیو لسیزو کې د پښتنو د دیني او سیاسي حرکاتو یوه
مهم مرکز په توګه داسې مشهوره شوه، چې په لندن کې به انګرېزانو د هغې څارنه
کوله او سید جمال الدین افغان په خپل کتاب تتمة البیان کې هم د دغو خلکو د جهاد
په باره ونه او ستاینه، خپله خوښي او پارنه ښکاره کوله.

د اتلسم قرن په وروستنۍ لسیزه کې، د بر سوات د شامیزي د جوړي د کلي په یوې
شپني صافي کورنۍ کې میا عبدالغفور د عبدالواحد زوی وزېږېد چې لومړی یې
د خپل کاله ګورواني کوله، بیا یې د علم او طریقت په زده کړه لاس پورې کړ. څو چې
د ۱۸۲۸ م په شاوخوا کې په بونېر او ستانه توب داسې مشهور شو، چې ډېر خلک یې
شاګردان او مریدان شول. ده نقشبندي طریقه له پېښوري حضرتجي او قادري طریقه
له صاحبزاده محمد شعیب څخه په دولس کاله زهد او تقوا کې زده کړه. بیا چې
په ۱۲۳۳ ق کال د هندي مجاهدینو بهیر د کابل له لوري راووسېد، نو د دوی سره په
تبلیغي او عملي جهاد کې شو. بیا سوات ته ولاړ، د سوات او بونېر او باجوړ او دېرې زرو
مریدان یې منظم کړل، او په ۱۸۳۵ م کال د امیر دوست محمد خان سره د شیخان په کلي
کې د سکهانو سره په جهاد کې شامل و. کله چې امیر بېرته کابل ته ستون شو، نود

سوات اخوند صاحب سوات ته ولاړ او په سيدو شريف کې دېره شو . (۱)

اوس نو انګريزانو په پېښور کې خپله چوڼۍ جوړه کړه ، استعماري چارو ته يې لاس وروته کړ ، نوې لارې چارې يې راوړې ، او خپل اقتدار يې په منظمه توګه خوراوه ديو سفزو په سمه کې يې د ملکانو او خانانو سره خبرې اترې کولې ، او دوی يې د خپل استعماري منظم طاقت تر جوغ لاندې را ښکل .

اخوند صاحب خو يو مدبر او د پښتنو په ژوند او روحياتو پوه رهنما و . ده د سوات او بونېر او باجوړ د پښتنو يوه لويه جرګه راوغوښته . دوی يې ټوله په خپله روحاني جاذبه او اغېزه نا که وينا ، سره ونښلول او په ۱۸۵۰ م کال يې د ستانې او سيدو نکی سيد اکبرشاه چې د سيد احمد بريلوي ملګری او دوسا وړ سړی و ، د خلکو لپاره د «شرعي امام» په توګه وټاکه او په خپله اخوند «شيخ الاسلام» وګڼل شو . او له پردو پرنګيانو سره يې د «جهاد» فتوا ورکړه ، چې د پرنګي لاس د سوات خاورې ته راوو ړد نه‌سي . خو له بده مرغه سيد اکبرشاه ژر په ۱۱ مې ۱۸۵۷ م کال مړ شو او ده زوی سيد مبارکشاه يې پرځای ودرېده ، او په خلکو کې اړودوړ ولوېده . خو د اخوند صاحب په همت د خلکو جرګې راوغوښتلې شوې ، او په سمه اړ لوړه کې د پرنګيانو سره د سوات ټيانو او ګردو يو سفزو او پښتنو د غزې روالې وې . په اکثرو غزاوو کې په خپله اخوند او سيد مبارکشاه هم شامل وو لکه : لومړی ، په ۱۸ د جولای ۱۸۵۷ م د نارنجي اول جنګ ، چې د محمود زو رحيم خان او خدوخيل مقرب خان او مدد خان يې د سمې مشران وو . او د سوات د اخوند صاحب مريدان له دوی سره په جهاد کې ولاړو . دغه رحيم خان د نمير خان زوی خلکو د «زړور هوښيار» يا له

---

(۱) عبدالغفور قاسمي : تاريخ سوات د پېښور چاپ ۱۳۵۶ ق . نصرالله نصر : اخوند صاحب سوات د پېښور چاپ ۱۹۵۰ م . ولي محمد سواتي : د اخوند صاحب پښتو منظوم مناقب (خطي) .

هيو ګمس : د سوات اخوند د لندن چاپ ۱۸۹۵ م . محمد اسماعيل طوروي : صاحب سوات د پېښور چاپ ۱۹۵۳ م .

چې تردې جنګ وروسته یې په کرونو کې د جنګ د شهیدانو له کونډو سره د مرستې لپاره «د شهیدو ونډه» وټاکله (۱)

دیهم: د پنجتار جنګ: د هندي مجاهدینو یوه ډله د مولوي نعمت الله په مشرۍ د یوسفزو د پنجتار په منګل تهانه کې پراته وو. میر باز خان د مقرب خان دا کازوی دده ملګری و. او انګریزانو ته یې مالیه نه ورکوله. د سوات اخوند صاحب هم خپل مجاهدین له دوی سره ملګري کړل او پر پرنګیانو یې برغلونه کول. له پېښوره میجر جنرل سډني کاټن او میجر واکسن د ډېرو پلټنو سره راووتل او په اپریل ۱۸۵۸ م د دواړو خواو ډغرې سره شروع شوې. میر باز خان د جنګ پر میدان شهید شو. د مجاهدینو قاید ګرفتار او په دار شو. کلی یې وسوځل شو. د نارنجي کوزه خوا یې ونړوله، بیا نارنجي یې د پېلانو تر خپو لاندې سره ګډه وډه کړه. (۲)

دریم: امبیله: د یوسفزو د مېږ شمالي جنګ ته د سدوم پر شرقي شمالي اړخ چې بونیر ته لاروزي یو شپږمیله اوږد جګ کنډو پروت دی، چې امبیله یې بولي او سوق الجیشي اهمیت لري. دلته د بونیر، سوات، او هندي مجاهدینو او یوسفزو او ګردو پښتنو لښکرې سره یوځای شوي وې. مجاهدین د مولوي محمد عبدالله او ملک عیسی خان جدون په مشرۍ راغلل، په سوابۍ کې یې پر توپۍ حمله وکړه او پرنګیان یې وتښتول. د سوات اخوند صاحب هم له خپلو غازیانو سره راورسېد د ۱۷۶۳ م د اکتوبر په دریمه لسیزه کې سخت جنګونه ونښتل. د دیر، باجوړ، سوات، بونیر او شاوخوا غازیانو په مېړانه درې څلور هفتې پر پرنګیانو داسې زغل کاوه، چې انګریزي قوماندان نیول چمبرلین یې د اوو زرو وسلهو فوجیانو او توپخانې سره داسې په غار ننه ایستل، چې پخپله چمبرلین ټپي شو او ۸۰۹ تنه پرنګیان مړي په میدان کې پراته وو او پښتنو به ویل:

دامبیلې ګډر ماړه شول    چې یې خوراک د ګوره وو لړمونو له

(۱) لومسدن: د سوات راپورټ. د کلکتې چاپ ۱۹۰۰ م. یوسفي: یوسفزي افغان ۳۹۲.

(۲) جیمس: د پېښور حکمران د لندن چاپ ۱۸۹۸ م. یوسفي: یوسفزي افغان ۳۹۳.

پرنګیانو په امبیله کې داسې تاوان ولید نو یې په ۱۸ نومبر ۱۸۶۳ م دوی لښکر میدان ته راوستل ، چې اخوند صاحب هم پنځلس زره غازیان د دوی مخې ته ودرول ، د دسمبر تر ۱۵ پورې داسې جنګ جاري و، او دوی خلک وو وژل شول چې د هغه ځای «قتل ګړ» ویل شو . (۱)

د پښتنو تاریخ لږ لیکل شوی دی ، او که څه شته ، هغه هم د پردو او پخوله پرنګیانو لیکلې دي. خو پښتنو پخپلو کلو او بانډو کې عوامي شاعران درلودل ، چې په پښتو به یې دغه واقعات په بیان کې بدلې او چاربیتې ویلې. د سوات د جنګونو او د اخوند صاحب د غزاګانو بدلې هم ډیرې دي . مثلا احمد ګل د ټکري او سیدو نکي د بونیر د جنګ په یوه چاربیته کې اخوند عبد الغفور ستایي :

غزا پسې راغلی دی په ګوربې الله نور که
بو لا دې شرف په هر طرف عبدالغفور که !

غزا پسې یې راوستل ګوجر له بیلچې نه
صاحب اره راغلي دي خطونه له ما نجې نه
زهر شو پرنګی چې شو خبر له دې لانجې نه
سوات یې ذوالفقار، ملك به په وینو یاندې سور که
غزا پسې ...

تربور شو دانګریز ، د صاحب څو سره خزانه ده ؟
خوراك یې شکرانه ، جامه یې واړه زر څو نه ده
قلعه یې چارچوبی په جماعت کې یې ستا نه ده
منګل به دانګریز په وینو رنګ لکه باتور که (۲)

---

(۱) جیمز ډارمستټر: د پښتونخوا د شعر هار و بهار نشریحات ۲۲ د پاریس چاپ ۱۸۸۸ م .

(۲) د هغه کتاب ۱۳ م د اچار بیته اوږده ده دلته یې تش دوه بنده وکښل شول چار چوبی : غسل خانه او داو داسه ځای ته وایي.

اکبر شاه هم داخوند صاحب د ملا یانو څخه و. هغه د قتل ګړ معرکه په یوه بدله کې بیان کړې ده. چې څو برخې یې دادي:

راغلي غازیان د پرنګي په دغه ګړ (۱) باندې
اوري قتل ګړ باندې

راغلي غازیان غزاله واړه لووړه لووه عالمه — ګډیږي ګړ په شور عالمه
داشادومخي (۲) خدای ورکړي دي په کوورعالمه — اخلي به تري پور عالمه
توره یې نه وه، ډزیږي ورکړه په لوړ (۳) باندې — اوري قتل ګړ باندې

پوبند وروسته داخوند صاحب د ملا یانو شهادت داسې ښيي:

مولیان مړه شول را مدد شي اې د سوات صاحبه!
اوښي دي څاڅي برسات صاحبه!
په عاجزانو باندې شوی دی پسات صاحبه!
شو بو نور میرات صاحبه!

لکه بلبلي چې اریږي په لګړ (۴) باندې — اوري قتل ګړ باندې

په پای کې وایي:

نه حصار یږي مومنان ترینه خطرنه کوي — توپې پرې اثر نه کوي
خان پرې غازي کړي چې څوك د ین د پیغمبر نه کوي — بد دی چې باور نه کوي
زه اکبر شاه ملاو رحمه په ملا تړ باندې — اوري قتل ګړ باندې (۵)

په دغسې بدلو کې د غزاو څینې جزوئیات لا هم ښکاره کیږي. د بونیر د جنګ په چاربیته کې چې د پکلی د ترنګړی حمید ګل ویلې ده، د انګریزانو لښکر کې ګووه او سیکان دوا ره ښيي:

---

(۱) ګړ: دلته د مقراو استوګنې د ځای معنی لري.
(۲) شاد و مخي: مراد پرنګیان دي، چې مخو نه یې د بیزو په څېر سره دي.
(۳) لوړ: سوټی، دوهلو غټ لرګی
(۴) لګړ: یوښکاري مرغه دی، لکه شا هين.
(۵) د پښتو نخواد شعر هار و بهار ۱۶۱

دانگریز پلټنې راغلې کلکتې نه ورسره خپلې سیکان ، دېل گوره وو

دپښتنو له لښکروسره بونیروال ، چمله وال ، ملکاوال گرده ملگري وو. دسوات له قا-
شقاره هم غازیان راغلي وو. په دغه بدله کې وايي :

د باجوړ زلمي پرواړه کړل تمام چې لښکرې ور له راغلې له قاشقاره (١)

دنواب جان په پوهچار بیته کې د بونیر دجنگ پهلوانانلکه اخوندصاحب اود بر کلي
ناصرخان او دسیلمی اوسوات یوسفزي اودسورکاوي شوریدا شتنې جنگونه ستاییل کیږي
چې کسر یې دادی:

په سر د قتل کړ پرنگي ډیروکه ارمان شوه چیغه د خطر پسې

په ستر گویې تیاره شوه چې لیدل به یې غازیان شم راغلې سراسر پسې

د سې څو بدلې دهارو بهار په ۲۲ ، ۲۳ ، ۲۸ مخونو کې دارمستتر د دغه رخت دشاعرانو
له خولې کښلي اوچاپ کړي دي چې د سوات او یوسفزو اوترقاشقاره دغزاگانو اوغازیانو
او محنو ړطن اروشانو نومونه او کارنامې پکې ثبت دي.

د طالب گل له یوې چاربیتې څخه دغه یو بند د جنگریز حالت ښه روښانه کوي :

په پرنگ باندې معامله هوله ترډیره بیرته تښتي که چا ور کړه واله لار

توبه گېر شوسوات ، له سمې ، له بونیره ډیر عالم شو په کندو کې ترې مردار

داچمله یې کړه ددوی له سرگه تیره چې راتله به پښتانه پرې وار په وار

چې د سوات عالمو وکړ و رته پام باجوړو له پرنگي وکړه قتلونه

(هارو بهار ٢٧)

---

(١) د غه کتاب ١٩

دپرنگیانو څوارلس لوی منصب د اران هم په امیېله کې غازیانو وو یشتل. پرنګیانو ملکا دد غه ځای د یوه خاین ملك زیدالله خان په ملګري وسوالحه، اوپرنګي قوماندان د دغه خیانت په مقابل کې ده ته خپله تفنګچه وبخښله. خو په ۱۸٦۸م پخپله دده، قومي پښتنو دی په همدغه وسله وواژه : (۱)

تو هم شب را بسر کی‌سی بری ای شمع کم فرصت !

گر فتم سو ختی پر و انه آ تش بجا نی ر ا

پرنګیانو د ولیدل چې په توره اوتوپك او توپ اواورد پښتنو سره په دغو غرو کې دغري وهل اسان کار نه‌دی. نوېې دېر لاس وپښې و وهل . چې په پښتنو کې بیلتون واچوي او دوی پخپله سره وجنګوي. له بده مرغه خو پښتانه پخپله هم یو له بله دېرسره خوري ، او کورنیوجنګو ته تیاروي د۸ ۱۸٦م په فبروري کې دبونېر یو څو خانان د هندي مجاهدینو سره یوځای دسوات دخلکواو اخوند صاحب سره دجنګ په نیامت راوخوځیدل چې داخوند صاحب لښکر بریالي شول او هغه خلك وتښتیدل او داخوندا قتدار پر بونیرا و چغرزو باندې لا هم ټینګ شو. (۲)

دبونېر اوغرنیو پښتنو اشوزو ، دولت زو، نورازو او نورو قبیلو پرغلو نه دپرنګیانو پرسیمو اوسدوم باندې تر ۱۸۷۷م پورې هم جاري وو . چې یوه‌شرېې عجب‌خان‌دمردان دچارګلی‌ملك اودملا سیرو روښاني‌لمسی‌و. دی پرنګیانوجرګې ته راو بالله ، په‌دې چم‌یې ونیواوپه ۱۸۷۸م کال یې په‌داروځړاوه . (۳)

دسوات دغه‌دغو رخنګ او پاڅون‌دوره هغه‌وخت تیره شوه چې دسوات روحاني مجاهد قاید اخوندعبدالغفور په۷ محرم۱۲۹۵ق =۱۲جنوري۱۸۷۷م په‌سیدوشریف کې وفات‌او هورې‌ښخ شو . داخوند صاحب شخصیت او درایت او روحاني نفوذ

---

(۱) یوسفزئی افغان ۳۰۳ .

(۲) دغه کتاب ۱۳۳ .

(۳) دغه کتا ب ۳۳۲

د سوات د تاریخ وروستنۍ ځلانده پانه ده . ده په پښتو یو مناجات هم منظوم کړی و
او ډیر مجاهد او مشهور شاگردان یې درل ، چې له هغو څخه ملا نجم الدین د جلال آباد
د هډې صاحب ( متوفا ۱۳۱۹ ق ) او عبدالوهاب د مانکي شریف پور د پښتو عقاید المؤمنین
ناظم ( متوفا ۱۳۲۲ ق ) او ملا ابوبکر د غزني پاسني ملا او فیض محمد د کابل د دو سهي
اخوندزاده د کابل د شمالي خوا د تګاو میا احمدالله او د تیمل ګړو ملا او د دیرشاه بابا او
د کربوغې ملا او د کندیه ملا او کشر میا گلجان او د شاشو بر سوات ملا او د متراملا
(۱) او نور په زرو مریدان او مجاهد شاگردان وو . چې د اوشا د سلسلې یې
تر اوسه لا هم چلیږي .

اخوند د کابل له دربار او افغاني شاهانو سره هم صمیمانه پیوستون درلود .
او تل به یې خطبه د افغاني پاچا په نامه ویله . افغاني سکه هم هلته چلیده او خلکو یې
ځانونه په افغانستان پورې تړلي ګڼل . او دا ټول د اخوند صاحب همت او مجاهدت و
چې د سوات سیمه یې له پرنګي ښکېلاک څخه ساتلې او هلته یې اسلامي احکام او
اسلامي حکومت د متفرقو او سرکښو قبیلو په اتفاق چلاوه . او د کابل استازي به
هم دده ته ورتلل . لکه چې په ۱۸۷۶ ق چې امیر شیرعلي خان خپل سفیر احمد خان
ساکزی د جلال آباد حاکم ، سوات ته واستاوه . خو اخوند دو نې عاقل سړی و ، چې
د افغانستان د شاهزادګانو په داخلي چارو او شخړو کې یې لاس نه واهه او ګردو
خلکو ته به یې د اسلامي ورورۍ لار ښووه . په ۱۲۹۰ ق کال امیر شیرعلي خان
خپل ولیعهد عبدالله جان په یوه فرمان کې اخوند صاحب ته معرفي کړ ، او هغه هم
ومانه او دمیارکی لیک یې کابل ته راواستاوه ( دوشنبه ۱۳ شوال ۱۲۹۰ ق ) چې
دغه منل لیک د کابل په شمس النهار کې چاپ شوی دی . (۲) او ځکه چې د دغو
ځایو خلکو تل ځانونه له افغانستانه سره نښتلي ګڼل ، نو په ۱۲۹۲ ق کال چې د باجوړ
د فیض طلب خان او د ناوګی د غلام حیدر خان اختلاف شو ، د امیر شیرعلي خان په توصیه

---

(۱) حجة البیضاء د بمبئی طبع ۱۳۱۱ ق

(۲) شمس النهار . د کابل چاپ ۷ شماره ، لومړی کال ۱۲۹۰ ق . د اخوند صاحب د ۱۳ شوال ۱۲۹۰ مکتوب د امیر شیرعلي خان په نامه .

بې دغه شخړه سره سمه کړه او روغه يې وکړه او هم په ۱۲۹۱ ق کال د چترال د مهترزوي نظام الملک د امير شيرعلي خان دربار ته راغلی و. (۱) د اخوند تر وفات وروسته په سوات کې د جهاد نغری سوړ شو. په ۱۸۹۷ م د سالارزو او بونېرزو په مله کنډ بريدو کې، خو پرنګيانو اوس اخوند غوندې کلک او ځېن مقابل نه درلود د ولس ورخې جنګېدو، بېرته د انګرېز راج ټينګ شو، او په ۱۹ جنوري ۱۸۹۸ م دا شخړه وشلېده. (۲) خو پرنګيانو پر ګردو غرونو باندې خپله قبضه ټينګوله. ملکان، خانان او نوابان او ځمکنداران او روحانيان يې ګرده په سوات، چترال باجوړ، دير، بونير، کوهستان، تالاش، چيلاس، تورمب او الايي او پکلي پورې د ځان ملګري کول او د زوي په ډول به يې د خلکو وينې زبېښلې.

## (۹)

## تراخوند راوروسته سوات

په ۱۸۹۵ م کال پرنګيانو د خپل تسلط ټينګولو لپاره د مله کنډ، سوات، دير، چترال، باجوړ د غرنيو سيمو د پښتنو دا پلولو او ټکولو نه زيات، د مله کنډ ايجنسي د يوه پولټيکل ايجنټ سېمجرا يې اي ډين تر مشرۍ لاندې جوړه کړه او له پېښور ره يې تر چترا له پورې په پاخه سړک جوړولو لاس پورې کړ.

د دې لارې جوړولو ضرورت او اهميت د حکومت هند په يوه خط ۸ مې ۱۸۹۵ م نمبر ۳۳۲ کې څرګند شوی و. خو د انګلنډ مرکزي حکومت او د لارډ روزبري کابينې نه غوښتل چې په چترال کې مداخله وکړي او د ۱۳ جون ۱۸۹۵ م په يوه جوابيه کې يې له دې کاره سره په ښکاره مخالفت کړی و. خو د روزبري د حکومت تر سقوط وروسته چې د لارډ سالسبري کابينه راغله، د مردان او هوتي او مله کنډ او ورانې-

---

(۱) عبدالحی حبيبي: د افغانستان پېښليک ۲۰۱ د کابل چاپ ۱۲۵۳ ش.

(۲) يوسفزئي ۳۳۲.

زو ا وچکدوي او سوات اولو هاري له لاري بې ترچترا له پوخ سړ لـ جوړ کړ (۱)
او تپول د غه قبايل بې د خپل تلسط او پوځي برغلو نو ترز غل لا ندي راوستل او هم
د لته و چې پښتنو په و يل :

چر ته لندن چر ته چترال د ی بې ننګي زور شوه، پور نګي چترال له ځينه

پرنګي خو په خپلو استعماري چار واخته وه د ۱۸۹٦ م تر بندو بست وروسته ار تې د کرني
مځکې ، ځينو ځينو خانانو او نوابانو ته ورکړې شوې اودفيو د اليزم ريښې يې
د هري ټينګي او کښې کړي . دغه زمينداران او نوابان د پرنګيانو سلسله و و .
خو په کښو پرګنو اوخلکو کې لا هغه د پرنګيانو سره تر بور ګلوي و ه .د ۱۸۹۷ ام
په منسي کې د بر سوات خلك بيا جنګ ته تيار شول او د پرنو ا ب خيلو با دارانو
پرنګيانو ته خبرور کړ ،چې دپا لم ملا صاحب د خپلو مريدانو سر ،دجهاد تياری کوي.

دسوات په لوړي پراو کې بوځيا ی لښا کی تو ميږي . د لتهٔ په ۱۸ جولا يې
۱۸۹۷م ملامستان غازي چې پرنګيا نر لېونی ملا او خلکو سر تورفقيرباله او اصل نوم
يې سعدالله خان د بونېرله بوې د رني کور نی څخه و، دجهاد توغ پورته او د شپې
يې نا بېره پر ملـه کنډ حمله وکړه . د لته له پرنګيانو سر ه د پښتنو لا س په لا س
جنګ وشو . ترسها وه غازيان شهيدان شول اودپرنګي دريلوی منصب داران
مړه او دري ټپي او ۱۲ سپاهيان مړه او ۱۳ ټپي شول (۲) تردي وروسته دسوا ت
او باجوړغازيان هم راورسيدل پهچکدره ،امان دره کي تر ۱۳ جولا يې ۱۸۹۷ م
ورو ستهٔ سخت جنګونه وو .اوداګست په اخر ني لسيزه کې جنرا ل بلډ پربرسوات
اوچيډول باندي هم برغل وکړ . پښتنو دسوتمبر ترنيمه پهلوړ ه او ژ وو ه کې
مقاومت کاوه . خوچې دا کتوبر په يو و لسمه ځينې سازشکاره نوابان لکه دخارخان
د جار نواب ،د نوا ګی خان او نور وطن فروښا ن په نو ي کلي کې سره راټول شول
د نوا ګی خان لس زر ه روپۍ او خا رخان د ري نيم ز ره اود جار خان دوه نيم زره

(۱) يو سفزئی افغا ن . ۳۳

(۲) هـ کتاب ۳۳۲

روپۍ له پرنګیانو څخه واخیستې (۱) او خپل آزاد وطن او غیرتمن خلک یې په پرنګي خرڅ کړل .

داود آزاد او ننګیالي یوسفزو او سواتیانو قسمونو ته انجام چې یې ننګوا او وطن د دښمنو خانانو څخه په پردو باندې خرڅ کړل؟ او دا هغه قوم او چې د بابړه او اکبر او اورنګ راج یې هم نه و منلی .

د سوات او یوسفزو د آزادۍ ورځې ورځې تېرې شوې وې. په دې بر کې د ملا الیاس اخوند کروسي غلام محمد خان دا تلسمي پېړۍ په منځ کې د خانۍ پر کټ ناست و تر ده وروسته قاسم خان بیا رحمت خان (مړ ۱۸۸۴م) بیا نواب محمد شریف خان (مړ ۱۹۰۴م) بیا نواب باچا خان (مړ ۱۹۲۵م) بیا نواب شاه جهان (عزل ۱۹۶۰م) د پرنګیانو د لاس ګوډاګیان د خلکو په وینو زبېښلو بوخت وو. خو د دې سیمې وروستني پښتون اتل د باجوړ د جنډول مشر حاجي امراخان (عمراخان) د عباس خان مستي خېل زوی په ۱۸۶۹م کال پر باجوړ او دیر خپله خاني ټینګه کړه، هر ځای یې جنګي ټینګې او ښکلي کلاوې جوړې کړې. او په لوی ډول یې لښکر مسلح او تنظیم کړل. خو چې په ۱۸۹۰م دا قندارجګې خوکۍ ته ورسېده، پرنګیان یې وبېرول او د شاوخوا نوابان او خانان یې پر را ولاړ کړل. ځکه چې امیر عبدالرحمن خان هم په کابل کې پرنګیانو ته لکۍ ښوروله، نو یې له کابله مکراني ملا دا مراخان په مخالفت جنډول ته ورواستاوه. خو امراخان پوهمند او پوه سړی و، دغه ګرده وراني یې لمدلې او چاره یې کوله، او چترال یې هم ونیوه .

په ۱۳ مارچ ۱۸۹۵م پرنګیانو له پېښوره خپل دېر مسلح لښکر د جنرال سر رابرټسن لو په مشرۍ د پنځو نورو عسکري قوماندانانو تر سره د سوات له لوري د امراخان پر ملي جنګیالو باندې را وخېژول. د دې جنګو نه وشول، او د غازیانو د زړې وینې توی شوې. د پرنګیانو خو هم لښکر ښه ټلی او منظم او وسله وال وو، هم یې په خلکو کې نفاق اچاوه، او سازشکاره وطن فروش خانان یې راولاړول. خو چې په ۱۷ اپریل ۱۸۹۵م

---

(۱) دغه کتاب ۸۵ م

دامیراخان دا قتدار ستوری را پریووت او کابل ته‌ولاړ، چې دلته‌د افغانستان د سلطنت په توګه اوسیده. اوپرنګیانو به‌ویل :« توله قبایلي مشران یا زموږ په لاس کې دي ، یازموږد دملګري د افغانستان دامیر په لاس کې . » (۱)

امیراخان په ۱۳۲۱ق کال په کابل کې وفات ،او د کابل دڅلوردهي د وبسل - آباد د بالاجوی په هدیره کې ښخ دی. اولاده یې د کوهدامن پرهغو سخکو بانډې اوسي چې دا افغانستان دولت هغه ته‌ور ښښلې وې .(۲)

# ۱۰

# د سوات لرغونی پلټنی

دسوات ښکلي سیمه چې دفاتحانو پرلار کابل ، کونړ ، باجوړ او باسون پرته‌وه ، د پانیني په آثارو کې د ۵۰۰ق.م را هیدې‌خوا اد بیانه بللې شوې،چې په پراکریت کې اوجیانه‌وه، او معنا یې هم باغستان یابوستان غوندې‌ځای دی. (۳)

دا نوم د پښتو په کومک ښه تحلیل‌موسي : ادي Uddi ودې دپښتو دوده ي هغه ریښه لري،چې نشو ونما اوده کول اوسمسوریدل‌دي. لدې سره‌چې‌ د ( اد‌یانه - وانه - ین پایخوړ ونهاي ، نوبه اد یانه = ودې‌ین شي.یعنې وده کوونکی باغ یاسمسور ین چې په پارسوبې بوستان یا ګلستان بولي .

---

(۱) دغه کتاب ۳۸۵

(۲) عبدالروف بینوا : پښتو نستان ۳۳ د کابل چاپ ۱۳۳۰ش.

(۳) سموبل بیل: دسي یو، کی پښتو ترجمه ۱۸۵ د کابل چاپ ۱۳۵۷ش. بیل په‌حاشیه کې وایي: څکه چې سوات دیوه ین په څیر دی ، نوادیانه نومیده .

تاسې د مخه و لوستل چې د ریګویدي په سندرو کې د سوات د رود نوم سوتي یا سواستو دی. څکه چې د دغه رود اوبه ډېرې او چینو څخه راځي ، نو ډېرې روڼې او سپینې اوبه دي. په لرغونو آریایي ژبو کې د دغه او سنی پښتو سپین او یا رسوسپېد . لکه سپیتا ـ سویتا سپینتا لوستل کیده چې په اوستا کې SPAETA او په پهلوي کې SPET ـ SAITA او په ویدي ژبه کې سویت CVET و (۱)

داسې ښکاري چې د سوات نوم دې هم د او ډود سپین والي له جهته له د غو لرغو-نیو کلما تو اله روښې څخه وي ، چې په اوم میلادي قرن کې هم د چین زایر هیو ن- څنګ دغه سپینې اوبه او په ستاینه چې ډېرې ښادار له ډېرښلو ، روڼې ځوږې ډهندارې هوندې راوزي (۲) او هم دغه سپینې او روڼې اوبه ابوریحان بیرو نی هم یادوي چې د جیوه سرمن JIVASARMAN اختر د کشمیر خالله د دغه میاشتې په ۲۶ ـ ۲۷ ورځ کوي او مناله د وی څخه بوشتنه وکړه چې دغه اختر ولې کوی ؟ دوی وویل: د جهلم د رود د سرچینې پر کینه غاړه یو ډنډ و چې خدای شهر نومید ، او د غه به دو یساکه د میاشتې په منځ کې چې اوبه ډېرېږي هینې لرګي راوړل . د غه ځای په سوات کې و . د کهږي (او سنې ګړی ) پر یل څنګ پروت دی او د لته د ري پڅوس وبالي سره ګډېږي . په دغو دوو ورځو کې د د غو ویالو اوبه خورا سپینې وي. او خلک وایي د الحکه چې مهادیوا په هم دغو ورځو د لته لمبېدلی و.» (۳)

اوس هم د سوات د سیدو شریف په شاوخوا کلیو کې یو ځای په دغه زاړه نامه په پښتو «سپینې اوبه» یعنې «آب سپید» بولي ، او دا راښیي چې د سوات نوم به له دغو رنو اوبو له لرغوني روښې څخه راوتلی وي .

سوات دار یا یي اقوا مو د تیر ېدلو ځای او هم تاتوبی شو ، یالوی سکندر له دې

---

(۱) دکتور معین : د برهان قاطع حاشیه ۹۳ . اد بار تو لمه او نیبر ګ په حواله . د تهران چاپ ۱۳۴۲ ش

(۲) د سی- یو - کی پښتو ترجمه ۱۹۳۱

(۳) البیروني : کتاب الهند ۲ ر ۱۸۵ د زخاوا نګریزي ترجمه د لاهور چاپ ۱۹۶۲ م.

لارې هند ته ولاړ. او کله چې تر ده وروسته هې یوناني جنرالان په بلخ از د هندوکش په سیمو او په شمال شرقي هند کې په جنګرېز بوخت وو، نو بیا د یونانی او باختري تمدن اثرونه پکې ښکاریدل، چې وروسته نو د بودیزم په شکلی او مهم مرکز هم شو خوشحال خان په سوات نامه کې وائي:

پکې لویې مناري شته، بتخانې شته ـ لوی کوټونه، حویلی د زمانې شته.

د نو نسمې پېړۍ تر لومړیو کلونو پورې چې پرنګیان تر سواته نه وو رسیدلي. د غو لرغونو ورانو ودانیو ته د چا پام نه وو، خو د خوشحال خان غاړ نظر په اولسمه پېړۍ کې لا پر دغو لرغونو بتخانو او منارو او کوټونو باندې لویدلی او په لوړ همت کې یې یاد کړي دي.

د سوات د بودائیانو زړې بتخانې چې سنګهارامه یا ستوپه (پښتو توپ) بللې کیدې پخوا په رام کنډ (خدوخیل) منګور، کاټلي، ډوډي ګرام، سوني ګرام. بنځي ګرام کانجي ګرام او بونیر کې لیدلې کیدې، چې له ۲۶۰ ق. م او اشوکا له وخته بیا تر اتمې پېړۍ پورې یې په هندي او بودائي او یوناني او کوشاني او یفتلي شاهي کورنیو پورې اړه درلوده.

وائي چې په لرغونیو وختو کې د سوات د رود د سرچینو په یو ډنډ کې بوغت اژد هار (ښامار) چې اپالاله نومیده اوسید ه، او تا تا ګا تا بودا دغه مضر ژوی سمې لارې ته راوارواوه چې د خلکو کښتو نو ته به زاوان نه رسوي. او همدا اته لرغونه لور تا تا ګا تا خپله چپنه پر یو للې اوار ه کړې وه. چې پر ډبره یې څپونه تر اوسه لا هم ښکاري. او پر بله پرښه باندې د تا تاګا تا (بودا) د پښې منځ هم لیدل کیږي. (۱)

او په ۱۸۹۵ م د سوات په دره کې، کې یو ډبر لیک په خروښتهي خط موندلی شوی و. تاریخ یې د شروانه میاشتې شلمه کال ۱۱۳ = ۵ جولائی ۲۹ م د ی، چې او س دلاهور په موزیم کې خوندي د ی. او دلته یوه سړي بوداو بو ډنډ جوړ کړی و. (۲)

---

(۱) سی ـ یو ــ کی از ۱۸۸

(۲) ستین کونو: خروښتهي ډبر لیکونه ۲-۵-۶ انګلیسي داکسفورډ چاپ ۱۹۲۹ م.

دخروشتهي خط د غسې ډېر ليکونه Kharoshthi—Inscriptions چې ګرده تر ۱۹۰۰ کاله لا زاړه دي . دمقامي خلکو یا هندي ښاهزادګانو په نامه د سوات په شاوخوا کې کشف شوي دي چې د پېښور ، لاهور ، سوات یا لندن په موزیمو کې خوندي دي لکه :

(۱) دباجوړ د مها کلي مهر د یوه یوناني حکمران په نامه (۲) د امب دډېرې کلي ډبرلیک د لاهور په موزیم کې د ۱۱۶ م کال (۳) دجمال ګړي ډبرلیکونه: د یوه دیني دارالمسا کېن جوړونه په ۲۷۵ م. نور پنځه ډبرليکونه چې تاریخ نه لري (۴) دمهابن دقلعه سنګ ډبر لیک ۱۷ م دلاهور موزیم. (۵) دباچاد کلي ډبرلیک د یوه ښاد کېنلو تاریخ ۲۷ م دلاهور موزیم . (۶) د پنجتار د سالم پور کتیبه چې په ۳۸م کال د وه باغه وقف شوي دي. (۷) له نورو مختلفې کتیبې مختلفو موزیمو کې (۸) په کنګله کې د پنجکوړې پرغاړه د یوه غره پرپرښه باندې یوه نوشته (۹) دسوات د یوه خاورین لوښي نوشته د یوه یوناني حکمران له خوا (۱۰) د تخت باهي ډبر لیکونه د ۱۹ م حدود د پېښور په موزیم کې (۱۱) د تیرت پر یوه پرښه د سوات په کوهستان کې د بودا د منې ترناقش لاندې (۱۲) د سوات د بټکرې پر یوه مات خاورین لوښي نوشته (۱۳) دکوز سوات د لوربان تنګي د پېلامې کلي پنځه ډبر ليکونه د کلکتې په موزه کې . (۱)

دسوات دلرغونیو آثارو د کېندنو او پلټنو کار له ۱۹۵۶ م را پدېخوا د یوې ایټالوي علمي ډلې په لاس شروع شوی دی چې د زړو ښارو او ودانیو ځایونه یې کېندلي او خورا ډېر آثار یې را ایستلي دي چې دسوات په موزیم کې پراته دي .

دغه علمي ډله وايي چې په دغو لرغونیو آثارو کې له ۵۰۰ ق . م څخه راپدېخوا شیان پیدا شوي دي . داو دیګرام له مونډل شوو آثارو څخه ښکاري

---

(۱) دغه کتاب : مختلف مخونه محبوبي : تاریخ خط و نوشته های کهن افغانستان ۹۲-۹۳ طبع کابل ۱۳۵۰ هش .

چې دغه ځای دسکندر دحملې پر وخت هم ودان و او دسلطان محمود په زمانه کې هېواد ان شوی و. په څېنو نورو ځایو کې ددرېمې او څلورمې میلادي پېړۍ آثار پیدا شوي دي او منګوره هم هغه ځای دی، چې په ۵-۶ پېړی کې دحکومت مرکز و. هن ېن چیني سیاح چې په ۵۱۸ م د تالو معبد یاد کړی دی. هغه د غه اوسني بتکره ده، چې یوسل وشل واړه معبدونه یې شاوخوا ته پراته وو، او اوس هم ډېر آثار پکې راوتلي دي او دلته ډېر ېنوشیانو او بوتانو دجوړولو فن داسې لوړې درجې ته رسېدلی و، چې د پروفیسر توچي په قول په او مه پېړی کې ددې ځای استا کاران چین ته بیول شوي وو، چې هلته معبدونه په خپلو هنري ښکلیو آثارو ښایسته کاندي. (۱)

## (۱۱)

# خوشحال خان او سوات

دختکو او یوسفزو ترمنځ پوله کابل رود چې دوی یې دابېسوړ په اعتبار «لنډی» بولي بهېږي، شې خوا ته له نوښاره ترا ټکه دختکو او کېڼ لاس ته د یوسفزو سیمه ده یوسفزي خو ترسوا ته او بونیره پراته او بولوی پښتون ټبر دی چې دخوشحال خان په وخت کې یواځې دسمې یوسفزي یوولس زره کوره وو چې ګرده پنځه زره سپاره ځنې راوتل (۲)

ختک خو په شمېر کې لږ او عددیې ددېرشو ته و، نه نیم زرو کورو ته رسیده. (۳) چې اوس یې تو له سرې دوو لکو تنو ته نږدې دي. (۴) دوی دلویو لارو سره نږدې پراته وو، او په خاصه توګه ملك اکوړی (۹۵۲-۱۰۰۲ ق) دچنجوزوی د کوهاټ په کربوغه کې اوسېده چې د اباسلي تر پورګلو پوله منځه راووت او دختکو په سرای

(۱) پروفیسر توچي: د کراچۍ د ډان ورځپاڼه دد سمبر شپږمه ۱۹۵۸ م.

(۲) تاریخ مرصع ۲۷۸.

(۳) د غه کتاب ۲۶۵

(۴) دوست محمد کامل: خوشحال خان خټك ۷، دپېښور چاپ ۱۹۵۱ م.

کې د کابل رود پرغاړه میشت شو، چې دغه ځای دده په نامه اکوړه و باله شو.
(حدود ۹۸۹).

دهلي مغولي دولت دخپل دله پېژخاصوېته سره سم دغښتلو او کینو یوسفزیوه دوهلو او ټکولو لپاره د کابل سین پرجنوبي غاړه دا ټك او پېښور پر او په لاردغښې یوه غښتلي او سره نښتي د پښتنو کورنۍ له خدایه غوښته چې هم په قبیلو یي فیوډالي ډګر کې او هم په میدان کې د یوسفزو مخې ته ودرېږي. نو لکه چې د هر استعماري قوت کړن-لاره «د نورو سره جنګول او پر دوی حکومت چلول وي» د پېښور او کابل صوبه دارانو او منصب دارانو هم د یوسفزو او ختکو ترمنځ د جنګ اور بلاوه، او د پښتنو په سره جنګولو کې به یې خپلې ګټې پلټلې. لکه په ۹۵۰ ق چې امیرخان دمغولي دولت حکمران نه لکه روپۍ د ملك حمزه په سیمه کې د کړېږي د مومندو د وهلو لپاره خرڅې کړې وې. (۱)

دخوشحال خان د کورنۍ او د یوسفزو دغه فیوډالي رقابت پخوانی و، کله چې اکبرپاچا په ۹۸۹ ق د خپل ورور میرزا محمد حکیم ایلولو ته راغی په دې انقلاب کې یې له خیرآباده ترنوښاره سیمه ګرده ملك اکوړي ته ور کړه (۲) نو د ۹۹۴ ق ۱۵۸۶ م په هغه خونړۍ جګړه کې چې د اکبر لوی وزیر بیربل هم غځول شوی و، ختك د اکبر پاچا په سیمه کې ولاړ وو، او وروسته نو هم د یحیی خان او شهباز خان په وختو کې د ختکو او یوسفزو دغه بدی وې چې افضل خان ختك یې احوال لیکلی دی (۳) او د (۱۰۵۰ ق) کال د روژې په میاشت کې د خوشحال خان پلار شهباز خان هم د یوسفزو د کمال زیو په تېره کې ټپي او مړ شوی و:

سن د هجر زر پنځوس و چې شهید شو شهباز خان (۴)

ترڅ د دغه د شهباز پلار یحیی خان (۹۶۹ - ۱۰۱۹ ق) چې د اکوړي زوی و

---

(۱) تاریخ مرصع ۲۰۵.
(۲) دغه ۲۶۵
(۳) د غه ۲۶۸
(۴) د غه ۲۷۰

«له یوسفزو څخه مسري کوټ (باندې) نیولی، او څه څه سرداران د یوسفزو یې د ملک ماموسره وژلي وو، او بیا چې شهباز خان ښه په کابل فتح مآب کښیښوه، خوب او آرام د یوسفزو ورک شو، کرات و مرات یې سندن مړه کړه ... او په وخت د خپلې سرداری یې له سندنیه له اکوزیه نه یې خراج او باج اخست. تمام سندن یې په ضرب د توري مسخر کړي وو.» (۱)

پدې ډول د یوسفزو عداوت او دښمني په مرات و خان علیین مکان ته پاتو شوه» (۲) او دغه بد مرغي تر څلورو پښو او خوشحال پورې را ورسېده چې د ختکو کورنی «دولت خواه» او یوسفزي «متمرد» گڼل کېدل (۳) او د دوی د قبیلوي جنگونو او زغلونو پېښې په تاریخ مرصع کې ډېرې څرگندې شوې دي.

کله چې د اورنگزیب پاچهي د پښتونخوا پر سیمو باندې له قندهاره تر اټکه وا غله او خوشحال خان هم د گرد و پښتنو د یوې گډې خوځښتنې او غاو په خاطر د ې ملي پاڅون او پښتني غورځنگ په سر کې ودرېده او داسې یې ویل:

درست پښتون تر قندهاره تر اټکه    سره یو د ننگ په کار پټ و اشکار

دلته نواوس دده د مشرۍ مقام او د شاعر په څېر د خلکو د ښوونکي او رهبر په بڼه دا تقاضاوه چې د زړو ناوړو او ضررناکو ناغېړیو او پدیو څخه لاس واخلي او د ډهلي د پاچهانو په گټه د خپلو پښتنو سره و نه جنگېږي. دی پر خپل پخوانی حال او د ډهلي د پردي دولت پر نوکري او دولت خواهي افسوس کوي او داسې وایي:

(۱) د غه ۲٦۸

(۲) همدغه.

(۳) همدغه ۲۷۸

د مغل نمك مې وخوړ شو پيړۍ — ما د زړو پکې روغې کړې پيړۍ
رعیت مې یوسفزي ده دوست خټك وو — په عزت او په حرمت کې مې څه شك و
د مغل د پاره ما توري وهلې — پښتنو به را ته کړې ډېرې ښکنځلې
که ورکزي که بنګښ او که یوسف دي — د یوهمه د ماد تیغ په تاسف دي
پښتانه مې په زرګونو دي وژلي — په سرونو به يې خره شوا يه وو لښلي
لا تر اوسه د سرونو يې انبار دی — په اټك په پېښور کې يې منار دی

(سواتنامه تر ۹۳ بیت وروسته)

دا تریخ اعتراف چې د خپل قوم او ژه او د پښتنو ښکنځل به يې اوريدل د خوشحال ـ خان د شاعرۍ يوه خاصه پاڼه ده، دی خو د ډهلي په دربار کې په «عزت او په حرمت» و، يوسفزي او خټك يې ګرده رعيت وو، مګر قومي او ملي وجدان دی ترا ته پخپله وايي:

د غلو زیست روزګار را باندې اور و — په صحبت يې د ما رنګ لکه تورسکو رو
را په غاړه د مغل منصب په زور و — ته به وایې چې منصب نه و، سور اور و

(سواتنامه ۵۷—۵۸)

د خوشحال خان د نش فيوډالي ژوندانه دغه جوله خوده پره کړ غيږنه او ننا وږه ده چې پښتنو به نو رځه (يعنې ازادي) غوښته او دی به يې ښکا نځه خو دی په سره ور کې ولاړ او د مغل منصب يې د خپلې غاړې طوق ګرځاوه نو ځکه د تلافی په هڅه کې د ده د ژوندانه يو ه روښانه پاڼه راواوښته، د پښتنو خان او ملك خو، اوس نو مشر او رهبر هم شو، د وړو پښتنو په ننګه ودرېد:

زه ګناه په دا ملك فساد بناد شو — د ما هم د «تلافی» کار په ياد شو
نن د واړو پښتنو په ننګ ولاړ يم — دا چې هسې په هر در، هر د رنګ ولاړ يم
چې پښتون شوم په دا هسې سوځنه پيره — نور مې خدای مه کړه مغل وايم په خيره
که د ننګ پښتانه شته ساعت هم دا دی — په دا ننګ کې سر و مال و ملك فدا دی

خوشحال نو اوس د پښتنو د آزادۍ نقشه پخپل خيال کې سره راتوله، او د خپل آزاد وطن بريد يې تا که:

ملك به خلاص کړم د مغل له غالمغوله — و مغل وته به نن کړم اټك پوله

(سواتنامه ۹۰ بیت)

د ډهلي دربار کوښښ کاوه چې دی بېرته د خپل منصب ترجوع لاندې راولي، پخپل بیاض کې داسې لیکي: «سعادت خان صوبه بیا موندلی د ډهلي نه راروان شو، بیا یې ما لره یې کښل راستول، چې زه خود تا په ملګري نازېږم، ما لره په مخه راشه چې د ملك د بند و بست مصلحت سره وکړو، ما خو یوه پېژره کې نیولې وه، د مغل د نوکرۍ سزې مې په زړه کې شلولې وې، ورته مې هرچه راست، درست، وکښل او دا رباعي مې ورته په فارسي کې وکښله:

گفتم که مغل شوم به شمشیر زدن — افغان را که بس بریدم گردن

آخر نشدم مغل همان افغانم — حیف است ز کس کوشش بیجا کردن(۱)

د یوې ټولنې په اجتماعي جوړښت او تشکیل کې محیطي او زماني تقاضا وې د غسې بدلون هم راولي چې ډېر روښان د تصوف له خانقاه د جګړې میدان ته راووزي او د ختکو خان باید یوسفزو ته په سر که او جرګه و لاړ شي.

خوشحال خان د ۱۰۸۹ ق د دریمې خور په اومه سوات ته رهي شو او سیاسي هلته وګرزېده(۲) د یوسفزو په او بد یې ګرده ولیدل یې له سواتنامې د ده په نورو شعرونو کې هم د سوات او سواتیانو یادونه ډېره شوې ده او د دوی د ژوندانه ظاهري او معنوي څنګونه یې روښانه کړي او په کره کتنه ورته څېر شوی دی چې د نمونې په توګه د لته یو څو د غه انتقادي ویناوې راوړل شوې دي:

د عوامو د کرغېړن ژوندانه جوله داسې راښيي:

یوسفزیه ډېر چرګین لري خانه‌ونه — آلوده، ګنده، بد بوی لکه سرایونه

خو سړي هومره یې سوي په هره خونه — په انګړ کې یې چرګان ګرزي سل ګونه

د رستو خونه یې نیولې په ګند وانو — په ګنده وږګار بتردي تر هندوانو

(سواتنامه ۳۰ — ۳۴)

---

(۱) همدغه ۲۹۹.

(۲) کامل: خوشحال خان ختك ۱۸۳.

دېهلي دربار خوله پښتنو سردډوی په غرنۍ سیمه کې دلښکري ډغرو خو ند څکلی و نوځکه یې په پیسو خرڅولوا و لمسون په دوی کې بیلتون اچاوه،خوشحال خان په یوه قصیده کې په ۱۰۸۶ق کال داسې وایي و :

خزانې د هندوستان دي راخپرې شوې      سره مهران دي لنوزي په کوهسار

(کلیات ۵۹۳)

یوسفزي خو تردېره وخته دپاچهانو له دې سیاسي لمسون اوپه وخته آزادوواوله اکبرپاچا او جهانګیر سره یې ډیرې خوږې لګولې وې ،خووروسته دمقامي سازشکار- و اوپه وخورونکو بډایانو په وسیله ،دوی هم دشاهنشاهانو دغه جوغ ته غاړه ټیټه کړې وه خوشحال وایي :

د مغل په طباخ ډیر یوسف مند ن دي      لکه وږي مچ ډیرېږي در نګ په د ونګ
که کعبه که یې قبله ده، خو ټنګه ده      په پیسه پسې په در و مې تر فرسنګ
که پیسه د ملنګی په لباس سو دي      مصلې به د ګید ړ کا پسې لنګ

(کلیات ۱۰۳۵ قندهار)

په سواتنامه کې هم دغه خصلت ته داسې ګوته نیسي :

و یش قسمت چې د وفا د سروتو      یوسفزیه پهدا کا ړ کې یې قسمت و
پول پیسه پکې دواړودین مذ هب ده      اندیښه یې خودسیم اودذهب ده
که یوه پیسه پهځا نواع دوه کېږي      هم هغه کا هیڅ په بله نه پوهیږ ي

(سواتنامه ۱۳۲-۱۴۰ بیت)

دسواتنامې تر)۱۱ وروسته بیتو نه هم پریوسفزو دغسې شاعرانه انتقا دونه دي چې د غهیوازې په همدغه ټبر پورې اړه نلري بلکې دا ټکرو پښتنودا قتصادي او جغرافي حالات نتیجه ده چې پخپله خوشحال اوختکهم کله پهدغې بلا اخته و و .

د اخود پښتنو دژوندانهد چا پېر یعنې د طبیعي جغرافي موقعیت اودا قتصادي تو لیدي احوال هغه را پیدا کید ونکې اوراز بدلې اوضاع ده چې ځا پیر یې غرنۍ او ډیرو کرنواو تولیدي یاصنعتي ودې ته مساعد نه و ،ددوی ژوند اوا قتصاد له کوچیتوب هزراعتي اوکلي والي سکون ته لا یشمېرنه واوښتی نوځکه « که یوه پیسه په ځه

انواع دوه کیده» دوی له هغې چارې څخه مخ نه گرزاوه، دا یې د ملکانو مشر حال و:

ملکي یې په کرم، نه ده په توره — په دا دواړه توکه مور ده باندې پوره
سود حاصل یې یا د بډو یا د خواست وي — په هر کلي په هر چم باندې یې زشاست وي

(سواتنامه ۱۸۳-۱۸۵ بیت)

خوشحال خان اوه میاشتې په سوات کې د خلکو په راپاڅوله او سره راټولو نه لگیاو هلته هم شاهي دربار لاس درلوداو ملکان او پیران یې سره را لمسول . میان نور د یوسفزیو پیر ، چې د لښکرو کولو په چارو کې خنډ اچاوه، د خوشحال خان په تلقین یې ظاهراً د شاهي دربار له سیلې څخه لاس واخیست خو په پټه به د پردو په لمسون په خپلو تیر ایستنو اوغولو نو لگیاو :

و مغلو ته کښل چې شیخ میان نور کړه — ما وې نور دا هسې سه کړه ده منظور کړه
(خو) د لښکرو په وتلو او لس سازشي — بیا د ده له فعله بل فعل آغاز شي

(سواتنامه ۳۲۵-۳۴۷ بیت)

افضل خان لیکي چې د دې سفر نتیجه د یوسفزو او مندنو جنگړیز او د هغې پور او سیکری ترمنځ یوه جرگه وه چې وروسته یې د شهباز گړي ځنگ تا د شاهي لښکر وسره جنگ و زښت او داد خوشحال داوو میاشتو تلقین و چې پخپله هم (۱) وایي :

لنگر کوټ مغلو ساز کړ — زه په ننگ د افغان شوم
که یوسف و که مندڼو — ز د دواړو نگهبان شوم
د مغلو مې بلا شوه — غر په غر په کوهستان شوم
سمه سوات په یوسفزیه — د هرچا کره مهمان شوم
په تو له د یوسفزئی — مظفر په هر میدان شوم
بیا مې سوات سمې ته شا کړه — پخپل ځوره پخپل مکان شوم

«کلیات» ۹۴۵ «قندهار»

---

(۱) تاریخ مرصع ۳۴۴

خوشحال خان خویوسفزي اوسوا تیان دخان مله کړل او سیان نور هم توبه گار شوچې دمغلوسیله به نه کوي او په سمه کې هم پښتانه پرځنگ ورسره ودرېدل خوددې گردو ځغا ستواو زیار په نتیجه کې :

تیراه مې و لیده راغلم ترسوا ته — پښتون مې ولیده دالوی لوی ذاته
عقل همت مې د چا و نه لیده — په بیارته راغلم ناست یم ملا ماته

«کلیات ۷۲۷»

ځینې ملي غورځنگونه داسې هم وي چې پهلوانان یې د میووخوند ونه څکي او ظاهراً بریالي نه ښکاري ، خو وروسته داحرکت ده شي چې هغه غورځنگ ده په بل پاخونا دامه وي ، او وروسته هم بل غورځنگ داسې را تلونکی وي ،چې د هغه مقصد پوره کانډ ي ، او د بري ستوري یې اشمر و ځلیږي .

دخوشحال خان دغه حرکت خود پښتون داجتماعي ژوندانه د مراحلو یو پوړ و،چې د پیر روښان د نهضت پاڅون او د میرویس هوتك د قندهار د آزاد یخوا هانو مقدمة الجیش گانېه شي ، نوځکه زه دغه ملي غورځنگ نامراده نه بولم اود افضل خان هغو لیکنوته حواله ورکوم چې د میرویس خان معاصرو، او ده ملي غورځنگ ته یې په خورا ډیره هیله او امید کتل ،چې په پای کې یې وایي :

(میرویس ) « تردا تاریخ چې سن زرسل ځلیرویشت دی په قندهار کې ناست خپل حکومت اوسر داري کا ، توفیق یې رفیق شه، په پښتون دی»(۱)

دخوشحال خان او یوسفزو ترمنځ خودگیلې گوزارې اوروغې جگړې خبرې ډیرې دي، پرسوات باندې ډیرانتقادي شعرونه هم لري،خو په دغه بیت کې ده د اوسوات قصه تمامیږي چې وایي :

یوسفز په که و هلې نه ده تور ه
په هاهو هر کت لري بلا یې دوره

( سوا تنا مه ۱۰۳ بیت )

---

(۱) تاریخ مرصع (۲۰۳م) دافضل خان ختك د تاریخ مرصع هغه فصل وگوری چې د میرویس غلجي تر عنوان لاندې یې کښلی د ی( ص۳۹۸)

# دخوشحال خان خټك
# سوات نامه

## مـــــتـــن

دعبدالحی حبیبی دخرگند و نو سره

# سواتنامه

(١) په دوران د شاه جهان پادشاه خوا ني وه
میسره د زړه هسره کا مسراني وه

(٢) «سرای» له سوا ته فاصله لري د پرش کروهه
چې ور کوزشې تردریا د سوات ترکوهه

(٣) درې څیزونه سې د سوات د زړه په یاد وو
نور یې هر څه په حیات و ماته یاد وو

(٤) یو خسران ، چې په حضور د واده کارو
بل یې بوی د نرگس زار ، دریم یې ښکار و

---

(١) شاهزاده خرم دجهانګیر زوی د اکبر پادشاه لمسی په ١٠٣٧ هـ ق د شهاب الدین محمد شاه جهان په نامه دهند پرتخت کېناست ، ٣١ کاله پادشاه و په (١٠٦٨ هـ)ددهزوی اورنګزیب خپل پلار بندي کړ . اته کاله په زندان کې و ، چې د(١٠٧٦ هـ) درجب په ٢٦ ورځ مړ شو . خوشحال خان اوپلار یې شهباز خان د ده معاصرین وو .

(٢)سرای د ختکو په اکوړه کې دنو ښار تحصیل د لنډي سین پر غاړه له اټکه څخه دولس میله لو یدیزې خواته پروت دی چې دخوشحال خان مولد اومسکن وا ، دلمك اکوړي دخوشحال غورنیکه ودان کړی و .
دختکو دغه مرکزله سوا ته جنو بلخه ٧٠ کیلو متره غونډې د کابل سین پرجنوبي غاړه پروت دی . چې په دې بیت کې «دریا» همدغه سین دی .

(٤) دخوشحال خان یوه ماینه یوسفزی دملوخان ولد اسماعیل خان لور وه چې په همدغه سفر کې واده شوه . صدرخان دخوشحال زوی ددې له نسه و ( تاریخ مرصع - ٢٥٩ ) په دې بیت کې خسران د اول حرف په سکون د غه خوسران یعنې د ماینې پلار - خیل دي . چې سخران هم تلفظ کیږي . اوددې له خسر سر د مشتق که معنی لري .

(۵) زه ئې کړ وم ، یوسفزیه رو ګردان وو

څکه ور غله تر سوا ته د دا ګران وو

(۶) ملو خان دوا د ه چا ر د ما په ز ړه کړ ه

زه په کوود(صدر)مو ر یې ، را وا د ه کړ ه

(۷) تما شه د نر ګس ز ا ر و ه که د ښکا روه

په پېر ی کې را پېر ز و د کر د ګا ر و ه

(۸) سوات مې وا ړه اګد مال کړه سر تر پا یه

خبر د ا ر بې شو م له هر ه هر ه ځا یه

(۹) ملك د سوات د ملو کا نو د ښا ط د ی

په دوران د یو سفز یو و ر ا ن ربا ط د ی

---

(۵) ارمغان: ځما ګران یعنې یوسفزیو څکه زما څخه پدوره، چې زه د مغولو د حکومت نو کروم . په دې همه مصرع کې ووغله په اول زور، دوهم و دریم سکون: یعنې سوات ته زما ور تلل او داخلیدل ګران کار وه.

(۶) ار: دواده کار. ملوخان: دخوشحال خومر اوصدرخان یې زوی و. چې مور یې ، دملوخان اوروه.

(۹) ا ر : دملکا نو . مر: ملو کا ن : یعنې شاهان .

(۱۰) و شمال و ته يې غر بلورستان دى
شرق كشمير غرب يې كابل او بدخشان دى

(۱۱) هندوستان و ته تور غر لري بد غاشي
يرې خاته به د لښکر و په غوغاشي

---

(۱۰) بلورستان : دسوات شمال ته غرنۍ سيمه ده. چې د قراقرم تر غرو پورې رسيږي.

بالتستان يا كوچنۍ تبت هم بللى شي (ارغونى هند ۱۱) چېنى زاير هيون څنګ وايي چې له دارېل څخه دا باسين په اوږسيمه كې ۸۳ ميله ليرې يو لوـ لو (بلور) ۱۶۶ مربع ميله شرقاً او غرباً پروت دى چې په واوره پټ غرونه لري او د پره طلا پكې پيدا كيږي. د كننګهم په قول د ځاى اوسنى بالتي ياورو كى تبت دى ، چې اوس يې هم ددې ځاى ورشه دار د خلك پلو او بولي ، او له شګو څخه يې په پريولو طلا راباسي. دانوم زوړ دى او بتوليمى يې بيلوي بولي. چې دا باسين پر او ږوغاړو ۱۵۰ ميله اوږد او پسوريې له ديوسيه څخه تر قراقرومه ۸۰ ميله دى. چې ګرده چاپيريې ۶۳۰ مربع ميله شي (دهند پخوانى جغرافيا ۷۱) محمد حيدر دوغلت په تاريخ رشيدي كې (ص ۳۸۵) د بلور شرق ته كاشغراو يار كند ، او شمال ته بدخشان او پد بڅ ته لغمان او جنوب ته كشمير ښيي ، چې اوسنى هونزه ، ګلګت ، چترال ، نورستان اولېږ كونړ تول په كې راځي. او مار كو پولو چې دد ې سيمې سره تيرشوى دى ، هم د بلورستان يادوني كوي (سفرنامه ۱ ر ۱۷۲)

(۱۱) غاښى : د غره تيره څوكه يا قله ، چې خټك يې غاشى تلفظ كوي. په قند هار كې غاښى او په يوسفزو كې ښاخى دى. تورغر چې دسوات شرقي جنوبي خواته پروت دى ، له غاښو څخه يې لارې د هزاره ضلع خوا ته تيرايږي. چې پخوا د هند غربي شمالي خواو.

(۱۲) تر کابل نه یې هوا داوړې ښه ده
د کابل هوا تر خه د ده خوږه ده

(۱۳) په هوا کې د کشمیر په آب ورنګه دی
حیف داچې کشمیر اوت دی،دی تنګ دی

(۱۴) طولاني دره تر دیر شو کروهو دېره
عرض یې دوه کروهه، یا ، یو یا تېرو بېره

(۱۵) له مشرقه یې دریاب د روسې مغرب ته
په کج راست بې وېل مه کوه کا تب ته

(۱۶) په هر کلي په هر کور کې بې ولې ځي
هم یې خوړ ي، هم بې هر لوري ته غلې ځي

(۱۷) نه پرې لار شته، نه بل کار، نه یې بل سود دی
خو یو کنج گوښه له خلکو، غله بود دی

(۱۸) کله کله یکې هسې ارزاني هي
چې په دوو تورو د شلو مهما نی شي

(۱۹) هم سړي او په چینې اری هم واوري
نه په سوات باد سموم شته، نه گرد خاوري

(۲۰) هر هر ځای د سوات د ملك،سلو کا نه دی
بې سرداره بې حاکمه ، کوه خانه دی

---

(۱۴) دسوات وادي څودسوات پر سین ودانه ده چې لنډی یې بولي ،اودشما ل ختیځې خواځخه لویدیځ ته بهیږي. لنډی له اشو کالامه راوزي او په نسته کې د کابل سین سره یو ځای کیږي، چې د غه وادي. ۲ میله اوږده ده.

(۱۵) په کج راست: یعنې د سوات سین دېر ښې او کیڼې خوا ته گرزي او راگرز ي.

(۱۷) غله بود: د غلې د پیدا ښت او بود پدلو ځای.

(۱۸) دوه تورو: مراد توره سکه (مسي) ده ، په قندها ر کې تورې کوچنیو مسي سکو ته وا یي .

(۱۹) سموم: دسین په زور، تو د یا سوړ اېتې باد.

(۲۱) ملوکانو عیش عشرت دی پکښې کړی
په هغه هنر کښې نه دی دا وګړی

(۲۲) پکښې لوښي منارې شته، بتخانې شته
لوی کلي ټونه، حویلۍ د زمانې شته

(۲۳) د میوو دی، د ګلونو د بوستان دی
د ملوک لایق په وخت د تابستان دی

(۲۴) دوه څیزونه دي د سوات تحفه تر واړه
ګل رخسارې یې کافرې، بازدادواړه

(۲۵) د سوات ملک چې پکښې روغې حویلۍ دي
په هر کور کښې ګلزارونه، سهیلۍ دي

(۲۶) د سوات ملک چې درست لایق دی د باغونو
یوسفزیو برابر کړ، له راغونو

---

(۲۱) وګړي: عوام، خلک. یعنې عام خلک یې عیش وعشرت نلري.

(۲۲) دلته اشارت دی د سوات لرغونیو آثارو ته چې ما په مقدمه کښې ایخه څېړلي دي.

(۲۳) ار: د بستان.

(۲۴) ار: ګل رخسارې کافر بازدادواړه؟ مګر متن صحیح دی. ځکه چې د ګل رخسارې صفت هم باید جمع مؤنث (کافرې) وي. او په دې بول د بیت وزن هم سمېږي. مراد هغه د کافرو ښکلې ښځې دي. چې پښتو ابسه یې له زاړه کافرستانه راوستې او په حسن مشهورې وې.

(۲۵) سهیلۍ: هندي کلمه ده، یوه نجلۍ چې د بلې نجلۍ د لوبو ملګرې یا خواهرخوانده وي. دلته مراد ښکلې پېغلې دي.

(۲۷) په هراوړ کې فواري دي، ابشارونه

ښه ښهرونه، ښه سرايونه، بازارونه

(۲۸) هسې ملك، هسې هوا، هسې جويونه

نه ځايونه، نه باغونه، نه بوټونه:

(۲۹) کال په کال د ملك په هیسك کا ندي با ختونه

بې لښکرو پښتون ځان کا ندي تا ختونه

(۳۰) یوسفزي په دېر چېر کېن لري ځايونه

آلوده، گنده، بدبوی لکه سرايونه

---

(۲۸) یعني: سره ددې چې ښه هوا، ښه فضاوښکلا او باغونه لري، خوحال يې ښه ندی. او ددې بد حالی علت په بل بیت کې ښيي.

(۲۹) هیسك: پچه اچول، قرعه اندازي. د تاريخ مرصع شاغلی سمو نکی لیکي یعني: په ملك پوچې اچوي. قرعه اندازي پرې کوي او دغه شان يې بايلي (ص۰۱۲۲) مگر دلته اشاره ده د یوسفزیو او پښتنو هغه ویش (دفتر) ته، چې مځکې او کورونه به يې پس له معینه مدته په کورنیو باندې د سړي پوپرسر په پچه (قرعه) بيا سره ویشل. دا اجتماعي نظام د نهم هجري قرن په اوسږ ی نیما یي کې شیخ ملي د یوسفزو مشر له خیبره تراتیکه پخپلو خلکو منلی وچې د تاریخي تحول په لحاظ د ارزښتوانسانا نو د کلیاوسره شریك ژوندانه یوه نمونه ده. دا نظام د شیخ ملي په (دفتر) کې بیان شوی و. چې اوس يې نسخه نشته او وړوك کتاب دی (وګوری مقدمه)

(۳۱) که په سوات کې به پېخرد یورېږي، ماشي
د منګورو، برورو، وبل په چا شي ؟

(۳۲) یکې د وه ځله تېژن په برورو شوم
هر هر ځای دانې دانې په ځو سورو شوم

(۳۳) خوسړ ي هو مره یې سپي په هره خو نه
په انګړ کې یې چرګان ګرزي سلګو نه

(۳۴) درسته خونه یې نه والې په کند وانو
په کند مروزګار بتر دي تر هند وا نو

(۳۵) بابي زېږه یې روزګار کا، چې سالان دي
خواجوزي یې نورځه نه دي، بقالان دي

---

(۳۱) چاپي نسخې : په نظير د ي ؟ مګر نظير د لته سمه معنی نلري . په نظير دي د پښتوژ بې سره سمه وینا نده . په یوه خطي نسخه کې داسې دي: که په سوات کې به بې خېروي وروېږي . . . چې ددې ضبط صحيح بول (په بې خر) دی . پېخرد قندهار په پښتو کې دهر شي ډېر ښت او پر یماني ته وايي . یعنې په سوات کې غو ما شي او کيکې خورا ډېر ې دي خوشحال خان ښخپل د یوان کې وايي :

په پېخر به د هرچا کره پرا ته ووې که داد ر مې دړلی غو ندې ارزانوای (د قندهار چاپ . . ٥) دا کلمه په چاپي او خطي د یوانو کې بخسر شوې ده، خو په ځینو خطي نسخو کې پېخېر هم لیکلې ده . ددې همې مسری منګورو واړه او ر وړه لوځه غټ حشرات دي . چې د چرګانو اوځا رووپه پوست کې پیدا کیږي او وینه زبېښي .

(۳۲) موړه : هغه پارسوب چې د اښتوو هلو ځځه پر بدن پیدا شي .

(۳۳) انګن یا انګړ : د کور غولی .

(۳۵) بابي زي : د یوسفزو هغه ښه چې د خوشحال خان خسر خیل و . اما خواجو هم د باېزي وروراو دا کولمسي و چې د یوسف کړ وسي دی ( خورشید جهان ۳۹۱ )

(۳۶) په هر کال یې دوه تیرسو باز نیول شي
کافر کیه یې په شکل ، شمایل شي

(۳۷) که بل ښکار دسوات په ملك کې په مقدار دی
په هر لوري یې تل ، دل دزر کو ښکار دی

(۳۸) مرغاوي په یې دسیند تر سرو پاشته
د نااهلود توپکو پرې غوغاشته

(۳۹) هم گاوز ، بزونه ، سرزې هم کوته پایي
اما وز کې کړې تو بچها نوځه په وایي

(۴۰) چې دسوات سره تړلی دی ملك د پر دی
د یوه سردار تر سرو پایه تېر دی

(۴۱) دچترال سرحد دسوات سره قریب دی
غر اوسم یې آبادان جریب جریب دی

(۴۲) وچترال وته یې لارد کوهستان خي
ترچترال په پنځه ورځې کاروان خي

(۴۳) درې خلور سیاشتې دالاروې په روانه
د پر آفت لري له برفه ، له باړانه

---

(۳۶) تیرسو: درې سوه . ار: کافر که یې په . ښاغلی کامل لیکي : چې برده-فروشي هم کیږي او په شکل صورت پکې ښکلي او پېرودلی شي (مرصع ۱۲۲۰) نو کافرگی یا کافر که، د کافرو د کام ښکلې نجلی ده .

(۳۷) دل کېدل: ټمکوب کېدل.

(۳۸) یوه نسخه: مرغاوي پکې همیند .

(۳۹) سرزه: میش کوهي ، دغره وحشي میږه .

(۴۲) اوس هم کوهستانی سیمه دسوات سره لگېدلې ده. چې خلك یې کوهستاني بلل کېږي ، او چترال دسوات شمال مغرب ته دی ة

(۳۴) تله را تله د خلا پل په دا لار کم شي
مګر کسار په بدرقه د ملك سم شي

(۳۵) يوه لار د هندوکوه ده ترکستان ته
بله لار دا دچترال ده بدخشان ته

(۳۶) بله لار چې د پټن ځي تر کاشغره
بله لار که پامورنګ ځي لره بره

(۳۷) داخو لارې په سرحد د هندوستان دي
نورې لارې په سرحد د خراسان دي

(۳۸) يوسفزي په شماره تر حساب تېر دي
اماواړه ګاو خر ونه دي که ډېر دي

---

(۳۴) ملك: په لوېري زوراو دوهم زور کې، د کلي مشر، چې جمع يې ملکان دي.

(۵۴) د هندوکش له دروځخه د ترکستان (د آمو څنډو) او بدخشان خوا او وته لارې اوس هم شته.

(۳۶) په ځينو نسخو کې پټن هم راغلی دی. خو پټن په شمال مشرقي سوات د کوهستان په سيمه کې دا پامېن په سمه غاړه يو کلی دی (کامل - سرصع ۱۲۲۰) مورنګه خود هندوستان په کوچ بهار کې يوه غرنۍ سيمه وله سوات ته په زرو ميله لېرې ده چې د لته به خوشحال خان هغه مورنګ نه ښيي (کامل . ۱۲۲) دسوات لوېديځې خواته دارنګ برنګ سيمه شته (رياست سوات) ښايي چې مورنګ دد غو کلماتو يو محرف شکل وي، او کاتبانو به اړولي وي، دغه ځای خوشحال خان ارهنګ برهنګ بللی دی (وګوری، کليات . ۹۶ د قندهار چاپ)

(۳۷) خراسان: پخواچې به کوچي پښتانه قبايل چې لا تر اوسه هم ميشته شوي نه دي ترخيبر پاسېن غره پا د کسې غره څخه غربي خواته راتېر شول . دغه مځکه چې اوسنی افغانستان دی، دوی خراسان باله. پوهنده به په دوبې خراسان ته را تلل چې دامو تر غاړو او تر هراته او پاد غيسه د دوی ورشو خراسان و .

(۴۹) د مغل نمك مې و خوړ شومه پېړ ی
ما د زړ و پکې رو ښې کړ ې پېړ ی

(۵۰) رعیت مې یوسفزي وه، د رست ختك وو
په عزت او په حرمت کې مې څه شك و

(۵۱) د مغل د پاره ما توري وهلې
پښتنو په ما تېرې کړې، دېرې ښکنځلې

(۵۲) که ورکزي په که بنګښ او که یوسف دي
دیو همه دما د تيغ په تا سف دي

(۵۳) پښتانه مې په زر ګونو د ي و ژلي
په سرو نو به يې خره غوا يه وو لېښلي

(۵۴) لا تر اوسه د سرو نو يې انبار د ی
په اټك په پېښور كي يې منار د ی

(۵۵) په دوران د اورنګزېب پاد شاه په بند شوم
بې تقصيره، بې ګناه هم د رد بند شوم

(۵۶) د ري ځلور کاله په بند داورنګزېب شوم
خدای چې خلاص کړم، انتقام ته ناشكيب شوم

---

(۴۹) دلومړی مسری پېړی، نسل او پښت معنا لري، چې په يوه قرن کې دې پښته تېرېږي. دخوشحال غور نيکه ملك اكوړی دا كبر معاصر و. چې له ۹۰۰ ه دخوشحال خان تر زمانې پورې ۱۱۰۰ ه ټول دوه قرنه او شپږ پښتنه شي. د دوهمې مسری پېړی يو نلې شوې چوکی ده.

(۵۲) ورکزي او بنګښ په تيراه او كوهاټ کې او يوسفزي په مردان او سوات کې دپښتنو لويې كورنۍ دي. بله نسخه: که وركزي دي كه بنګښ دي، که يوسف دي. د يو ـ و ی.

(۵۳) لېښل: بار کېدل. لېښل: بار شوي

(۵۴) انبار: منار. مراد هغه منارونه، چې له ککريو څخه د انسانانو به يې جوړوله

(۵۶) ار، او پوه د بله نسخه: انتقام ته ناشكيب شوم. يعني بې صبره شوم.

(۵۷) دمغلو زيست روزګار را ياد نه دي اورو

په صحبت يې د ما رنګ که تورسکو رو

(۵۸) را په غاړه د مغل منصب په زور و

ته به وا يې چې منصب نه و، سور اور و

(۵۹) ناګهانه په دا ملک فساد پيدا شو

د ما هم د تلافۍ کار په ياد شو

(۶۰) د فساد که يو بخرى و، ما اور کړ

اور يې پورې داورنګ پادشاه په کور کړ

(۶۱) دريا خان مې دخچې ګوتې غلى دى

ايمل خان مې د پګړۍ شملګى دى

---

(۶۱) مر: خيچى . ار: خچى = خچه ګوته، دلاس کوچنۍ ګوته. غلى دداړو حرفونو په زور، ګوتې ته وايي، چې په کابل کې يې چله بولي. شملګى د شملې تصغير دى.

دريا خان داپريدو خان و، چې د ۱۰۸۳ هـ دلوى اختر دمياشتې په منځ کې يې پر کوهاټ حمله وکړه او دخوشحال خان ملګرى و. اما ايمل خان مومند اوددې قوم مشر او دخوشحال خان ملګرى و، چې په (۱۰۸۳ هـ) يې دخيبر په جنګو کې د مغلو صوبه دار محمد امين خان ټاټوبنت زوره لښکر وور تباه کړل. خو خوشحال خان يو دخپلې خچې ګوتې غلى، او بل دپګړۍ زړه شمله ګى بولي.

داته يا ياد داخبره په ډاګه شي، چې دا دواړه نومونه پښتو دي: اي + مل: لومړى سابقه د هو = خه = ښه يو لهجې تحريف دى. نو هومل = هيمل = ايمل د ښه مله (نېکو همراه) معنا لري.

اما دړ پاچې د پښتنو د ډېرو تاریخي رجالو نوم دی. نه فارسي د ریاخخه ندی راغلی . بلکې پخپله کلمه د پښتو ریښې څخه راوتلې ده ، تر یوې عامې قاعدې لاندې:

په پښتو کې یوه اصلي ریښه وي ، چې له هغې څخه د (ېدل) په نښلولو د فعل اسم جوړ شي . که په هغې ریښې پورې یودوصف او تملك (یا) ونښلو وه، یو توصیفي نوموونه له هغو اصلي ریښو څخه جوړ یږي ، چې دپښتنو په اعلامو کې لیدل کېږي ، اوپه لومړي نظرېې وصفي ریښه نه ښکاري لکه :

بس (ریښه) + ېدل= بسېدل (بس شدن) بس + یا= بسیا (سند)

موس (رر) + ېدل= موسېدل (تبسم کردن) موس +یا= موسیا (خندان)

غور (رر) + ېدل= غورېدل (فخر کردن) غور + یا= غوریا (مفتخر)

لګ (رر) + ېدل = لګېدل (شاغل شدن) لګ +یا= لګیا (شاغل)

اور(رر) + ېدل = اورېدل (باریدن) اور + یا = اوریا (با وزه و فواض)

خوږ (رر) + ېدل = خوږېدل (شیرین شدن) خوږ + یا= خوږیا = خوږیا (شیرین)

بر (رر)+ ېدل= برېدل (پیروز شدن) بر + یا = بریا (پیروز)

دد غې قاعدې سره سم له در + ېدل (قیام ،مقاومت) څخه در +یا=دریا جوړ شو چې یووصف دی . یعنې درېدلی او هغه څوک چې مقاومت لري .ارد قیام اود و ېدنې همت لري . دانوم څکه د پښتنو خوښ و ، چې دوی تل مقاومت او زغم او ټینګښت دربدن خوښول . نود (دریا) معنا په اصله پښتو کې (مقاوم ،ایستا ، مدافع ،مبارز مستقیم) ده .نه (بهاند ,جاري ،دریا) .

(٦٢) چې تنبې مې دختلك دوړاندې تللې
د مغل را سره ملې وې سورې، بلې

(٦٣) دخپل وچولي په کار د ما باور دی
څه وماوته خا ښن څه يې خيبر دی!

(٦٤) دا اسمان چرخ فلك ودا به شوله
اورنګزيب پادشاه وېرانه کړه پخپله

(٦٥) يکباره يې په لاس وتېوې نا پسندې
خود په خود يې په خان کړلې د اشندې

(٦٦) دا همه واړه د ما ظاهر، باطن دي
پښتانه چې واړه خوښ له ځانه نن دي

(٦٧) که مغل سره د ما دزړه اخلاص وی
خدای خبر دی، که پښتون له مانه خلاص وی

---

(٦٢) تنبې: په اول پېښ د يوه قوم يو د ډله خلك. خوشحال خان وايي: سل رحمت د مهمندو په تنبه شه (کليات ٩٨٠ قندهار)

(٦٣) او: چه وماته څه خاپش څه يې خبر دی ؟ مر: څه وماوته خاپش څه يې خبر دی ؟

دواړه متنونه سم نه ښکاري. خاښن = خاپخ د دو منډو په سيمه کې د ګند او لوړ يو غ ته د خيبر يو مشهور کو تل دی چې د ١٠٨٦ ه د لومړی خور په مياشت کې ايمل خان او دريا خان دلته د مغلو ډېر فوجونه تباه کړي وو. ځکه نو زه د خوړ پر ځای خيبر صحيح ګڼم، او دا دواړې کلمې تصحيح کوم.

(٦٤) مر: چرخ وفلك. ار: چرخ فلك. دا يو امتزاجي ترکيب دی تراوسه يې، هم چرخ فلك بولي، واو نلري.

(٦٥) شندې: اول حرف زورلري يعني کيسې او کانې او غورځادي واقعې.

(۶۸) زن دوارو پښتنو په ننګ ولاړ یم
داچې هسې په هرد ر، هرد ر ننګ ولاړیم

(۶۹) چې پښتون شوم په داهسې سپینه ږیره
نو مې خدای مکړ د مغل، وایم په خیره

(۷۰) که مغل د ماته سل وایي خبرې
همګي واړه په ما يي خاورې سرې

(۷۱) دا پوهیږم چې مغل لره که ورشم
تراوله به زه لا، په چاره بهتر شم

(۷۲) د مخامخ به پوخوورځې په نمانځه شم
پسې شا به حرامخور، ګیدي بې کانځه شم

(۷۳) په تعظیم چې ورته ودرېږم مخ وراندې
امراګان به د مغلو خوښي کاندي

(۷۴) په ورتلو به بیا خدمت راځخه غواړي
پښتانه چې سره وژنو، دیو پرې ویاړي

---

(۶۸) د لوړې ی مسر ېولاړ د واو په زور (ایستاده) او دوهم د واو په سکون لهولاړ ل ځخه یعنې تللی یم.

(۶۹) ار: وایم په خیره په ځیروېل: په لوړ غ و یل، په ځیر یعني ځیره شوې خبره او بې پردې خبره (و ګورئ د ۱۹۰ بیت پا ڼوړ)

(۷۰) ار، ډر: خاورې خرې؟ سره: په پښتو امبار ته وايي، جمع يې پدارمني
ليك دود سرې راغي په ۳۴۰ بيت كې هم خاورې سرې دي.

(۷۱) او: تراول به لا په چاره کې بهتر شم.

(۷۲) ګیدي: د ګاف او دال په کسره، احمق او ناپوه او بې حیا.

(۷۳) امراګان: امیران او لوړ ماموران. بوه نسخه: په تسلیم چې ورته ودریږم.

(۷۴) دیو: دوی.

(٧٥) پښتنه نه به را ته هم کا ز ي ښکنځلي
چې يې لافې په ناحق د ننګ وهلي

(٧٦) چې په زړه کړم د ايو خوخبري يادني
نو ې و'ړ ه اند يښني شي، را ته بادي

(٧٧) و مغل ته به خبري په وربوز کړم
سر ي پريوزه که به سرورته بيا کوز کړم

(٧٨) نه په خپل، نه په پر دي يم، خو په ننګ يم
په دا ننګ کې ځو يه، پلار سره په جنګ يم

(٧٩) که د ننګ پښتانه شته، ساعت هم دادی
په دا ننګ کې سرو مال و ملک فدادی

(٨٠) دا هم شکر چې مې و تړله توره
دما توره په جهان کې شوه مشهوره

(٨١) ورځ په ورځ فتح و نصرت، تازه تازه شي
کال په کال، د مغلو جنازه شي

(٨٢) تر کا بله تر اټک، په سم په غرو نو
انبارې دي د مغلو د سرونو

(٨٣) اورنګزيب پادشاه پخپله، رايت را وړي
که يې زړو، که يې زور و، دی پرې چاوړي؟

---

(٧٦) ار: رانه بادي.

(٧٧) وربوز: د مخ راو تلې برخه د پزې سره. په وربوز خبري کول: تکبر.

(٨٣) اورنګزيب د هندوستان د لښکرو سره په ٢ د دوهمې خور ١٠٨٥ ه د پښتنو مقابلې ته حسن ابدال ته راغی، چې له پېښوره (٧٧) ميله شرقي خواته دی. ار: پخپله رايت راوړي– که يې زړو که يې زور دووي پرچاوړي؟ مر: دی پرې چاوړه؟. په دواړو بولو سره دا بيت مبهم او د توجيه وړ دی. نچاوړل په پښتو نثارول=خونې- کول دي .شايي داسې به وي: که يې زور و، پرې نچاوړ . يعنې زر او زر يې دواړه پر نثار کړل او کار يې ځنې واخست (؟)

(٨٣) په غرزي له هندوستانه راولاړ هو
حبطه خاورې په سر، په بیار ته لاړ شو

(٨٥) پنځه، شپږ کالونه تېر ددې فتور دي
پښتانه په زړه خوشحال، مغل رنځور دي

(٨٦) عاقبت يې و هيڅ ته سرګند نه دی
ګوره څه شي؟ کار د خدای دی، دسند نه دی

(٨٧) که حيات په دا دنيا يم، بخت مدد کا
هو سفزیه د نفاق خو بو نه ر د کا

(٨٨) اوه میاشتې یم په سوات کې ګرزېدلی
همه وارو دی عظیم سوګند خوړلی

(٨٩) ملکان به يې وخپل سوګند ته کوري
په لښکر به جملګي سره وشوري

(٩٠) ومغل و ته به نن کړم ، اتک بوله
ملک به خلاص کړم د مغل له غالمغوله

---

(٨٣) غرزي : د (غ) په پېښ ، هغه آوازچې د غرور او خوښۍ په وخت کې له ستوني راوزي، یادسري د غورځنګ حالت . اورنګزیب یو کال اوڅلور میاشتې په حسن ابدال کې د پښتنو د ماتولو لپاره پروت و. څرچې د شوال په ١٥ سنه ١٠٨٦ ه په نا کامی بېرته دهلي ته ولاړ .

(٨٦) سند : دسین په زور او د نون په سکون، سنجش او تعقل. خوشحال وايي :
که پدر دی که پسر دی سره بېل لري سندونه ( کلیات ٢٥٢ قندهار)

(٨٨) او : همه وارو دی .

(٩٠) بوله : سرحد. د دوو پټو ترمنځ دویش نښه . غال وغول ; شور او غوغا .

(۹۱) دا تېك، د پېښور، د کابل کوټ ځي
لوى هلك کو ژونده و اره په دا چوټېږي

(۹۲) په دا کار، که یوسفو به بې وفا شي
الوداع ده، چې دمابه وروته شاشي

(۹۳) نورمې ځای په څوتره، په لوحانۍ دی
که ځولۍ وی، که نه‌نا کا م د کرلاني دی

(۹۴) څو ژوندی یم، وا به نه‌ووړم، له‌دې هوډه
مرد کی ـه په‌وار وار، ورشي تر کوډه

(۹۵) که پیوند دا مهل خان د دریاخان شته
د خوشحال خټك سېلوی تر دامان شته

---

(۹۱) چوټ : چورت او تردد ـ ناوان ـ حمله او اعتراض ـ گزار کول . په دې بیت کې د هلك (=طفل) کلمه دیوه بې سارنامه (کوټ) لپاره صفت، یو نادر استعمال دی .

(۹۳) څوتره ـ د کوهاټ جنوبي خوا ته دخټکو دلرغونې سیمې جنوبي برخه ده . اولو حانۍ = لوانی = لونې هم ډېر کښته، دمروتو اوگنډه پوره تر سنځ دېنو جنوبي څنگ ته پراته دي .

لو حانی یا نوحاني دلواني یالونې ، هندي شوی شکل دی . چې په یکه کې داخل شوی دی .

کرلا نې : د پښتنو دپښتنو دخینو قبیلو پلا ردی . چې بیله غلجیو او نورو اکثر قبایل کرلانی بلل کیږي . اوخټك هم له دغو کرلانو څخه دي .

(۹۴) هوډ : راسخ عزم او ثبات . گردن کشي . هوډه کول : په کلکه اراده د یوه کار هڅه کول . کوډ : هغه کوچنی غار چې مرد کي پکې اچول کیږي او د مرد کو په بازی کې سابه کول اصطلاح شته .

(۹۵) سېلوی : سیله کول ، طرفداري ، حمایت .

(۹٦) ورځ په ورځ به کار بهتر د پښتانه وي
د نن کار به د مغلو، سبا نه وي

(۹۷) که نور واړه پښتانه د مغل آش خوري
چې د موږه ورته شاه ده، واړه شاش کا

(۹۸) خدای دې نه کا، که له موږه يو کنډو شي
بیا به هله په چا جوړ د مغل رو شي

د ا د خان کلان قصیده ده، په احوال د جنګ و جدل چې له مغل له مخالفته و ✲

... . . . . . . . . . . . . . . . . . . . . . . .

(۹۹) په دا کار کې چې اوس هلې توري
په مهندو بازې مه شه مېندې بوري

---

(۹۸) ار: د مغل روشي. بله نسخه: د مغل د شي. کنډو: رخنه، کونډ.
کنډو کېدل: رخنه پکې جوړېدل. د دېو تر منځ درز پیدا کېدل.

* د اعنوان په تولو نسخو کې شته. مګر وروسته خو کوم قصیده نده لیکلې شوې او هغه مثنوي ده چې دوام لري. زما په خیال دلته به افضل خان د خوشحال خان د هغې اوږدې قصیدې لپاره ځای پرېښی و، چې خوشحال خان په ۱۰۸٦ ه کال د دریمې خور په لومړی ورځ د خیبر اوایمل او دریا خان د مشهورو جنګونو په ویاړ ویلې ده او په دې بیت پیل کېږي:

بیا له کومه راپیدا شو دا بهار      چې په هر لوري یې ملک کړ بوګلزار

ښايي چې دغه قصیده به په منقول عنها نسخه کې نه وه کښلې شوې، نو کاتبانو خو عنوان واخیست او متن یې پرېښود.

دغه قصیده د خوشحال د کلیات د قندهار چاپ په ۹۱۵ مخ او د ارمغان خوشحال په ۱۷ مخ کې راغلې ده. ښاغلي لوستونکي دې هلته ولولي.

(۱۰۰) په شنواري، افريدي باندې رحمت شه
پەصافيو په غلجيو بركت شه

(۱۰۱) چې مغل دجگړ لې تا نه نيو له
نوغلجي شه په پيوند توره و هله

(۱۰۲) د خټکو نه يو لك خټك د اخل دي
نورخټك وار ه تر اوسه لا باطل دي

(۱۰۳) په ورکزيه په بنگښ باندې نفرين دی
له د يووا ړ و اواسو نومې زړه شين دی

(۱۰۴) يو سهز په که و هلې نه ده توره
په دا هو شرکت اري، پلا يې د توره

(۱۰۵) که فرصت وي تر اوله تر آخره
د دې کاربه در ته نظم کړم خبره

(۱۰۶) بيل په بيل کتاب، څوجز دسره ساز کړم
حال به شرح ترانجامه تر آغاز کړم

(۱۰۷) چې په دا تړو ر کې شوي دي جنگو نه
تر کا بله خوا بې په فر سنگو نه

---

(۱۰۱) ار: غلجي په پوند توره وو هله. بله نسخه: غلځي شه په په پيو ند توره وو هله. چې (ی) تکي نلري. پوندەورکول: اراده کول دي. بايې چې دا سر ی به داسې وي: نو غلجي په پونده توره و وهله؟ جگړ لې دغه جگړ لك د ی د کابل شرقي خوا ته د غلجو سيمه.

(۱۰۳) ورکزي او بنگښ په کوهاټ او کور مه کې اوسي.

(۱۰۴) ها، هو: دواړه د ايجاب توري دي. ياجمعاً به يې معنی هياهووي

(۱۰۶) ار، سر: بيل په بيل؟ دمتن سمو نه حدسي ده، يعنې جلا به يو و بـيل کتاب څوجزه ورته جوړ کم.

(۱۰۸) اوس به حال د سوات د ملک درته بیان کړم
د دې خلقو کاروبار به در عیان کړم

(۱۰۹) چې د ننګ په کار کې شي پیدا داچارې
د ناکس د کس، همواري ناهمواري

(۱۱۰) پښتانه واړه نادان د جهل کان دي
که یې واروې یوسفزي په بل شان دي

(۱۱۱) ما د سوات د عالم ښه ننداره وکړه
د هر هر فریق مې بیا ښه ښکاره وکړه

(۱۱۲) خو په خوله کلمه لولي مسلمان دي
په وعده په عهد، قول بې ایمان دي

(۱۱۳) دلیر سود، دلیر بهبود، دلیر مقصود دي
پیدا نه دي له تاخو شنود، هم نا خوشنود دي

(۱۱۴) د خپل سود د پاره ګرمه یاري کاندي
چې یې سود نه وي، بې شرمه یاري کاندي

(۱۱۵) خبر دار کله په شرم، په کرم دي
همګي عبدالزوجه، عبدالدرهم دي

(۱۱۶) هم یې کبر، هم یې حکم، هم یې نازوري
په هر څه کې دعوتو، ساز ناسازوري

(۱۱۷) یا یې شیخ، ملا په مکر په افسون خوري
یا یې مال پخپل پردي، مګر خاتون خوري

---

(۱۰۹) په دو هم مصراع کې لف و نشر غیر مرتب دی یعنې د ناکس له خوا ناهمواري او ناوړې او د کس له خوا همواري او سمې چارې.
(۱۱۴) ار: د پاره کرم یاري کاندـ چې یې سود نه وي بې شرم یاري کاندي؟
(۱۱۵) عبدالزوجه. د ماینې مریی. عبدالدرهم: د پیسو مریي.
(۱۱۷) یعنې ماینه یې مال پخپل او پردي خوري.

(۱۱۸) سوداني ، بدي د لور ،چي او نه بلوري
په داغو توکه کي غرق دي سخ تو ري

(۱۱۹) په کم اصل ، په بد اصل نظر نه کا
د تنگو په لالچ ، خور اولور وا ده کا

(۱۲۰) اشنا يي در سره کا ، دزره د پاسه
خپل ساتي، طمع به کاندي ستا له لاسه

(۱۲۱) زر رو يي به دي نقصان کا په رويي
آواره کا،درسته غوا ، د غوا په بيي

(۱۲۲) په تميز کي سراسر وار ه مبهوت دي
چي پلي ور ته گو هره شبه يا قوت دي

(۱۲۳) که په کور کي خزاني لري دزرو
بيا خواره خوري، په شرشمو په ډيرو

(۱۲۴) داد ب په کار کي هسي ناهموار دي
کهرمشر، تورسپين، په يوه شمار دي

---

(۱۱۸) سوا: دسين په فتحه = سوا : سودا وربايي ناروا کاردی . يعنی علاوه ترسود اونورو ناوړو ، دوی لوني هم خرڅوي ،اوبدي اوو لورونه پراخلي.

(۱۱۹) يعني دتنگو او پيسو اودوات په حرص خپله خورا ولور خرڅوي.

(۱۲۰) دزړه دپاسه : دزړه د کومي ضدحالت دی.

(۱۲۱) يوه نسخه: زر رويي به دي تاوان په پورويي کا، آواره تمامه غوا، د غوا په بيي کا .

(۱۲۲) ار : چي پلي ور ته گو هر شه يا ياقوت دي ؟ صحيح پول يي هغه دمتن دادی. شبه دشين اودبي په زور، دمر يودا نوتهوايي = دانه های آبگينه (غيات)

(۱۲۳) هرهم : يو بوتي دی ، چي ژيړ گل کوي ، له دانوڅخه يي تور تيل باسي او يا ني يي پخوي .
ډيره هم يوه غرني ونه ده. چي خواران غذايي مواد ځني اخلي.

(۱۲۵) درست عالم یې د ګوارو په شماره دي
ترتا چکولا په زیست کې آوره دي

(۱۲۶) کور په کور، ګرځندی ګو ندی او بدنیتی
بیهوده له ځانه خوښ، بې برکتی

(۱۲۷) نصیحت به درته وایم له مازده کړه :
چې په زه یې باور کړه، په هویې مه کړه

(۱۲۸) مخامخ یې نور څه نشته بې اقراره
پسې شایې نور څه نشته بې انکاره

(۱۲۹) که پاڅرېږي یا په هو، یا په کرم کړي :
د سفله سړي، په ځان پاندې ستم کړي

(۱۳۰) په درست کال یې ګوتې نه خېژي له کاره
بو تیمار دی دا و بو په شا لېزاره

(۱۳۱) یادسوات خاورې ګنده په کار د کشت دي
یا له ځایه یو سفز یه بد سرشت دي

(۱۳۲) و یش قسمت چې د وفا د مروت وو
دې سفز په پېدا کار کې بې قسمت وو

(۱۳۳) پول، پیسه یکې دواړو، دین مذهب ده
اندیښه یې خو د سیم او د ذهب ده

---

(۱۲۵) ار : دګوار په شماره . ګوار : دحیوانانو ګله .
(۱۳۰) بو تیمار : هغه څې یو ډول کوچنی دینګ دی او د شو لو د کښتو نو په او بو کې کیني .
(۱۳۲) او : بد قسمت وو .
(۱۳۳) سیم او ذهب : سپین او سره زر .

(۱۳۴) که یو ه پیسه په څه انواع د و ه کیږي
هم هغه کا ، هیڅ په بله نه پو هیږي

(۱۳۵) د دنیا په کار وبار کې هسې غرق د ي
نر او ښځې ، لوی ، هلك يې تا بفرق دي

(۱۳۶) یو ځا لم دی ، پرې سباشي، یا بیگاه شي
که په خوب يې له بنده گی لاس کوتاه شي

(۱۳۷) یکې نه چې یو سفر ي په د ا طریق دي
چې په سوات کې موندله نشي ، کوم فریق د ي؟

(۱۳۸) و میلمه و ته ست ، بر بر ، را شه نشته
نه د ژ بې چار ، نه شناخت ، مهردزره شته

---

(۱۳۴) ا ر : چې یو ه پیسه .

(۱۳۵) ا ر : نه د یوښځې ؟ مر: لکه متن ، اوصحیح هم دادی . یعني نر او ښځې، وړه او لوی يې تا بفرق (ترسره پورې) یکې غرق د ي .

(۱۳۶) په دې بیت کې له بندگی بايد په اول زور او دوهم اودریم سکون ووېل شي= بندش؟ یا به بدی وي یعني د اسې یوعا لم دی،چې تش په خوب کې يې لاس له بدی یا بندشه، کو تاه کیږي . سبا او بیگا يې داسې په بدیو یا بند شو نو کې تیر یږي .

(۱۳۸) بر بر را شه : د هر کلي او ستړي مشي دغ د ی . خوشحال وايي:
بر بر را یشه نوروز، د لفروزه !

(۱۳۹) اصیلان یکې بنده خوندي خر څیږي
هیڅ څوك نه وي، چې په داد یې و رسیږي

(۱۴۰) که مظلوم چرې ملك وته داد خواه شي
چې یوه روپۍ یل ورکا، روی سیاه شي

(۱۴۱) که په خوله کلمه لولي، مسلمان دي
په عمل کي یوسفزي، اکه د دان دي

(۱۴۲) تولا که تبرا، که دین ننګه وي
په دا دواړه کې د هر یوه زړه سنګ وي

(۱۴۳) که هندو کلمه ولولي، مرتد شي
څوك به نه وایي، چې دا په دین کې بد شي

(۱۴۴) هسې خلاص دي له ادبه، له تمیزه
اکه داه عربي، هندي کنیزه

(۱۴۵) په هر کار کې ناهموار، نافهمیده دي
نادیده دي، نادیده دي، نادیده دي

(۱۴۶) یکې نشته میوه دارې، باغي ونې
همګي دغره پلوسې دي یا غنې

(۱۴۷) په وعده په عهد، قول بې وفا دي
بې ادبه، بې تمیزه، نا صفا دي

---

(۱۴۰) یعنې د کلي ملك په یوه روپۍ رشوت، مظلوم کرموي اوظالم برسیږي.
(۱۴۱) دد: څاروي، چاروپا، چې جمع یې ددان ده.
(۱۴۲) یعنې په دینې دوستې یا کینه کې.
(۱۴۳) یعنې که هندو یوه پلا مسلمان شي، خو بیا بیرته له اسلامه وګرزي او مرتد شي.
(۱۴۴) داه: خدمتګار یا مریی. یوه نسخه: اکه خلاصه چې له عقله وي کنیزه.
(۱۴۵) نادیده: هغه څوك چې سترګې یې وږې وي یا نوی نعمت ته رسیدلی وي.
(۱۴۶) پلوسه: یوه اغزنه ونه ده چې میوه نلري. غنه: وچ اغزن لرګی.

(۱۴۸) در ، شیه ، کانې ، یاقوت ورته یوشان دي
سیب ، شلغم ، انار بهي ورته یکسان دي

(۱۴۹) نه ر د انو خوند ې موخې شهنکي کا
سوینې ډیر ې سره توول شي ، مږ د کي ا

(۱۵۰) نه يې قول ، نه يې عهد ، نه يې بول شته
خو د د يو ر یش و فش ، د ښځو پسو ل شته

(۱۵۱) نه پر ې حکم ، نه و چا څه و ر کوینه
واړه خان اره ګڼي ، په خان يې خور ينه

(۱۵۲) آشنا يي بې خواب وخيال غو ندې ليد ه شي
يا په مثل لکه يا د چې و ز يد ه شي

---

(۱۴۸) ار : در . سیمه کانې یاقوت ور ته یوشان دي ؟ شبه په دو و فتحو لکه په ۱۲۲ بیت کې چې هم راغله . د مرپو دانو تهوایې چې په (مر) کې دغسې چاپ شوې ده . اما که سیمه زې ، نو به دسیمې بوشکل وي چې صدف ته وايي وپه عندي سیم پدی.

(۱۴۹) یوه نسخه : هینکې ؟ مگرشهنك په اول زور اودو هم سکون ك یو زوول قدیم تو پك و (زنبورك). چې په فوجي تشکیلا تو کې به شهنګ خانې یو داروغه او مشرا فسر درلود . موخې هدف او دو یشتلو نخښې ته وایې .
یعنې د مړو خو ند ې په شهنك نخښې نشي و یشتای .

(۱۵۰) په لومړی مسر ی کې بول قول او وعدې ته وایي د بلل او بو الل له ریښې څخه . د دو همې مسرې د ښځو پسول په او ـ مردوا ړو چا پ شو و نسخو کې (پول) دی ، چې د لته سمه معنا نه ښندي ، نو ځکه ما دغه کلمه په پسول ( زېور ) تصحیح کړه . یعنې د ترو ډیره اوشمله او دښځو زیوره نه شته .

(۱۵۱)ار : پرحکم وونه چاڅه .

(۱۵۳) مبتلا په څو څور رنگه پلید ي دي
مریدي دي عنیدي دي، زندیدي دي

(۱۵۴) چې نیکان د پاکانې دعوې، داعي حال وي
له بدانو به بې وایه، کوم مقال وي ؟

(۱۵۵) د پلار د مال یوازې میراث خور دي
نه په ترور دي، نه په موروندې، نه په خور دي

(۱۵٦) چې دوروري جنازه په گور کې کښېوزي
کړه رضا، که بې رضا، په ورندار پرېوزي

(۱۵۷) له قاتله ځان غلط کا، په قصاص کې
د مقتول په ځای بل وژني په خاص کې

(۱۵۸) هر ملا په دا صحبت دور سره مل وي
په ثنا د یوسفزیو وي، که غل وي

(۱۵۹) دا لا څه دي، ځنې نور قباحتونه
کور په کور سره اخته په شدتونه

(۱۵۳) ار: مزیدي دي، عنیدي دي، زندیدي دي. بله نسخه: مبتلا په څو رنگه پلیدي دي - مزیدي دي، عبیدي دي، زندیدي دي. زما په خیال دري سره عربي کلمې دي: مزید د میم په زور شریر او متجاوز دی. عنید دعین په زور له لارې اوښتی او زندید نون په زور سیالي کوونکی دی (المنجد)

(۱۵۴) ار: له بدانو نه بې.

(۱۵۵) دا د پښتنو د هغه بدخوی غندنه ده، چې ښځو ته په میراث حق نه ورکوي.

(۱۵٦) ار. مر: په گور؟ دلته اشاره د د پښتنو هغه بد رسم ته، چې وروور بې مړ او په گور شي، ښځه یې بل ورور په زور کوي.

(۱۵۷) یعنې وژونکی او وژل شوی، کورنۍ وړک وي. او پرځای یې بل څوک نیول کیږي.

(۱۶۰) هومره ملك ، هومره اولس ، برکت هیڅ
که بې مال ، که بې دولت ، سخاوت هیڅ

(۱۶۱) که پالیز د خټکیو څوك ود ان کا
پخپله وته بې پرې نږدي ، اوم بې وران کا

(۱۶۲) کوم ملك بې هومره زړه ، هومره خواره کا؟
چې څلور ور ځې ، څلور سړي ماره کا

(۱۶۳) که سړي بې په صورت لکه آدم دی
په رڼز گار ، په خوی ، خصلت ، له د یوه سم دی

(۱۶۴) په غلط غلط خویو نو مبتلا دي
په بدخوی ، په بد خصلت ، د ځان بلادي

(۱۶۵) نه سزا د بد کاوانو پکې کیږي
نه په خپل عقل ، په ښه سړي پو هیږي

(۱۶۶) چې څوك ووایي : د ښه دي ، هغه ښه دي
چې څوك روایي : د بد دي ، کله ښه دي

(۱۶۷) که په مکر څوك خپل ځان پکې طبیب کا
څوك به نه وي ، چې ښکاره دده تکذیب کا

(۱۶۸) که په مکر څوك ملاشي ، یا دروېش شي
څوك به نه وي ، چې خبردد په کیش شي

---

(۱۶۱) ار: که پالیز دخټکو څوك ؟ مر: اکه متن . چې مراد د خټکو (خربوزې) پالیز دی .

(۱۶۲) ار : کومه ملك ؟ مر: لکه متن .

(۱۶۳) ار : له د یوسم ؟

(۱۶۹) هرمغل چې په سوات راشي شهزاده شي
هر سړی يې و منصب ته آماده شي

(۱۷۰) که د کلي داواس د تومن بزرګ دی
و سيلمه وته يې کتر، مګر چرګ دی

---

(۱۶۹) ار: لومړی مسری دوهم،، دوهم اوړی دی. مګر په تاريخ مرصع (ص۲۹۱) کې افضل خان هغه واقعه بيا نوي. چې شهزاده شجاع د شاهجهان زوی د بنګال په لور وولېږل شو. او په يوسفزو کې يو د بل سړي دعوه وکړه. چې زه شهزاده شجاع يم. په دې بيت کې خوشحال خان د همدې پېښې ته اشاره کوي، او افضل خان هم په اوږد ډول په تاريخ مرصع کې را نقلولي.

(۱۷۰) تومن: لومړی حرف پېښ اري. په ترکي لسو زرو ته وايي. امير تومان د لسو زرو مشر و (تاريخ مغل ۲۲۷) هغه سيمه چې مل کلي ولري (برهان قاطع ۵۳۵) دوهم مسری په ارمغان کې داسې دی: وسيلمه وته يې کتر مکر رچر ګن؟ ښاغلی کامل د تاريخ مرصع په حاشيه کې ليکي چې «د کلمې معنا و ضحه نده، ممکنه د دهندي ... سره تعلق ولري. او مکر د کتر ... مهمل ... ي. معنی يې پريکول، قطع کول دي. زمونږ سيمې ته په پښتو کې هم ورو کي ورو کي پريکولو ته کوتره کول وايي. نو ګوندې دخوشحال مراد دا وي چې سيلمه راشي، نود دېرښکاره کولود پاره دچرګ د هډو کيو ډېر ي ټوټې ... ي کړي» دا توجيه هم په زړه پورې نه ښکه چې د کتر مهمل متر دی نه مکر. کتر په پښتو دغوښو ټوټه ده. ښايي چې کتردد غې کلمې يو لهجوي شکل وي. او د مکر پر ځای مګر د پښتو او دري داستثنا توری وی. يا بګرد ګاف په پېښ وي، چې بګړلاو تښتېدلي ته وايي او دچرګ صفت به وي؟

(۱۷۱) خېر دا و کله پسې ننګ افغاني دي
کشمیري او پکلي وال دي ، لغماني دي

(۱۷۲) د هغو چې زړه د چرګ یې په مرګ رېږدي
مصلحت د سپینو ، تورو ور ته بلېږ دي

(۱۷۳) څوک هسې په هر جنګ اندې بري کا
یا له ترسه جنګ ته نه ځي ځان مرزي کا ؟

(۱۷۴) دا یې وار د نامردي ده ، هیڅکاره دي
خېراتي ، د جنګ په کار په څه شماره دي

(۱۷۵) آسوده په مال ، په ملك ، په زر ، د ښار دي
د دنیا روزګار یې نزده ، په روزګار دي

(۱۷۶) نه یې خوان ، نه دستار خوان ، نه چراغدان شته
درسته شپه یې د شونقیو په د خان هسته

(۱۷۷) چې په تیل ، په دستار خوان یې څه خرڅېږي
که زردار وي ، هم یې غوښې او به کېږي

---

(۱۷۱) پکلی = پکهلی : د شمالي پښتونخوا د هزارې ضلعې شمالي غربي سیمه چې پښتانه پکې اوسي .

(۱۷۲) ار: د چرګ په مرګ ریږدي؟ بلېږدل: نغښتل . پېچېدل . خوشحال وايي: تل طفلان د خپلو اوښکو د کریوان په اوني بلېږده. دلته په مصلحت د سپینو او تورو (سپېدو سیاه) وي، یا د سپینو تورو (شمشېرهای درخشنده) .

(۱۷۳) بري : دلته فتح مراد نده . بلکې اقدام او آغاز مراد دی چې د وهمه مسرۍ یې هم حال بیا نوي . ښايي چې په لومړۍ مسرۍ کې « په هر څنګ » وي

(۱۷۶) دستار خوان : چې مخفف یې دستر خوان ـ ستر خان او هغه کالي دي ، چې پر خوان یې غوړوي .
شونقی : هغه غوړ لرګی چې د شپې یې د رڼا لپاره د چراغ پر ځای بلوي او په پردوه ( د خان ) لري .

# فصل

(۱۷۸) ملکان، خانان يې ګل واړه خراندي
عالمان، شيخان يې واړه جاهلان دي

(۱۷۹) چې «عبدل» عبدل بالله شي پکې کېږدي
اوس بساند ګوته د کلي کټوي ښېږدي

(۱۸۰) د جهان عيبونه واړه سره ټول کړه
هغه واړه د «همزه» د غاړې پسول کړه

(۱۸۱) د «تالي» که د رته وايم يو کالي دی
ډکښانک دی ه اوګرې، که يا تالي دی

---

(۱۷۹) ملک عبدل (=اودل) دخوشحال خان په ژوندانه کې د سوات د يوسفزو يو خان دی چې خوشحال خان ته په ۱۰۸۲ ه کال د سوات په سفر کې راغلی و (تاريخ مرصع ۳۲۷) خوشحال وايي: اوس په درست اولس کې ښه ملک عبدل دی- که يې ژر کاغذ ای ښهره په مرګ يدرنګه (کليات ۹۳۹ قندهار) په پښتو کښه لوی او جسيم ته وايي يعنې د يوسفزو کښه (کټ) او مشر دی خوسره ددې او س لکه بساند (خروړی) ګوته سوی د کلي کټوي ښتې (= کاسه ليس) دی. په لو سړی مسری کې که (کټ = ګټ = ښټ) وکړو، کټ ښټ د هغه کښه معنا لري يعنې لوی او بزرګ او مشر.

(۱۸۰) ار: هغه واړه د همزه دغار پسول؟ مر: لکه متن. يعنې د جهان ټول عيبونه سره راټول که او هغه ګرده زما داخښي حمزه د غاړې زيور که. ملک حمزه د ملک ملو خان زوی او دخوشحال خان د يوسفزی ماينې وروراو دصدرخان ماماو، چې د افضل خان په قول «همزه مخ تور کړ مغلی شو.» (مرصع ۳۲۷) خوشحال خان وايي: همزه خان هغه چه نددی په جلګو کې- وړاندې ورستو پرې پرې کاله غرزنګه (کليات ۹۶۹)

(۱۸۱) دلوسړی مسری تالی (طالی) ديوه ملک نوم دی. خوشحال خان وايي: طالی چرګه نرښځی دی په ديدن کې- اوی چارخول لکه د چرګ په هو يو کړنګه (کليات ۹۶۹) په دوهمه مسری کې تالی لوښی دی.

(۱۸۲) د «کاچو» نسې نه خان دی، نه ملک دی
کالکوچن ، دروغژن ځنې د هلک دی

(۱۸۳) ملکي یې په کرم ، نه ده په توره
په داواړه تو که مورو ه باندې بوره

(۱۸۴) کار یې ځکه مسخره، حبطه، سپک دی
څوک چې زیات دی په تپه هغه ملک دی

---

(۱۸۲) کاچو د سوات د ملکو یو لرغون نیکه و . خوشحال وایي : نه حمید شته کجی شته له کاچوشته ـ څه له ټوروسره سرې هي له سنګه ( کلیات . ۹۷ ) په دې بیت کې کالکوچن سره یې چلي او کاپه اې مکار ته وایي.

(۱۸۴) حبطه په عربي د حبط معنی ضایع کېدل دي (صراح) مګر په دغه دول د حبطه وصفي شکل په عربي کې نه دی راغلی. پښتانه یې ابته وایي . ابته شو یعنې ضایع شو او بېکاره ولاړ . وخت ابته کول ، ځان ابته کول ، او هرشی چې یې ګټې ضایع شي . هغه ابته شو . ځکه چې په عربي کې یې دغسې د صفت په ډول استعمال نه دی راغلی . نو زما په خیال دد غې کلمې ریښه پښتو ده (۱ + بته) لومړی مفتوح همزه ، قدیم داریا یي ژبو نافي پري فکس دی . دوهمه برخه یې بت = بته مایه او د یوه شي د کلکو لو او د رولو ساده ده . لکه بتور کول یعنې ټینګ د رول او پخکلی کول . نو ابته بې مایې ، ناولاړ نا کلک او ناپها یسته ارضایع شوی . ددوهمې مسری تپه سیمې ته وایي چې یو ي طایفې ته خاصه وي . لکه د یوسفزو د داوه دزو تپه ، د مومندو تپه .

(۱۸۵) سودحاصل يې هاد بلو، يا د خواستو ي
په هر کلي، په هر چم يا ندي يې زغاست وي

(۱۸۶) د ملك يې د « دفتربولی» پټی وي
نورې تورې خاورې تويې په کوتی وي:

(۱۸۷) دملك يې که درې نور وورونه سکه وي
پدري پټی يې درست ريشه ريشه وي

(۱۸۸) بوه بخره د ملك وي، درې د نورو
په کم، زيات يې سره جنګ وي په تسکورو

(۱۸۹) چې نيکان، پاکان يې دادي، حال يې دادی
شيخ «عمان نور» يکې ترواړو لا والادی

---

(۱۸۵) چم: کوڅه. زغاست: زغل او تاختو تاز، اسم فعل دی.

(۱۸۶) ار: مر: په کتی وي؟ کتی په پښتو د مېشې او پول چنګو تي تعوا يې. چې د لته نه ورسره لګيږي. تورې خاورې ېر کوتی تو يې يعنې په سر تويې او د خاك بسر پښتو تعبېر دی. وا يې: چې دسوات ملك خپله مځکه او پټی نلري. تورې خاورې يې په سر وي او تش په هغه پټي ګذاره کوي چې دشيخ ملي په دفتر کې بولې ورته ټا کلې شوي دي او خپل ميرا ثي پټی يې د نورو سره وېشل کيږي، په دې بيت کې د پښتنو لرغوني رسم «دفتر» ته اشاره ده. چې په دوو، ورو ستنو بيتو کې يې شرحه هم شته.

(۱۸۸) ار. مر: اشکورو؟ دا يې معنا مهمله کلمه ده ښا يي چې صحيح يې تسکورو وي چې د يوتو د کښلو آله ده، او کله جنګ هم په کيږي.

(۱۹۰) اول حال د عالمانو در ته وایم
بیا له پسه «میان نور» در ته وستایم

*

(۱۹۱) عالمان همگی واړه سفیه دي
نه عالم دي، نه فاضل دي، نه فقیه دي

(۱۹۲) چې د «کنز»، د «قدوري» شي، ځان ملا کا
هر حلال، حرام په ځان باندې روا کا

---

(۱۹۰) میان نور دیو سفزیو بې علمه تش په نامه ملا شوندې پیرو. اود مغلو په تونگه یې د پښتنو آزادي ځوښتونکو لاروهله. خوشحال‌خان د سوات په سفر کې د لنگرخټک په کلي کې له ده سره مناظره وکړه او دی یې پړ کړ. نوخلکو د دوی ترمنځ بوگاښ اړوغه وکړه او خوشحال خان د ده میاننور د مغلو له میلې څخه را وگرزاوه. خوسیا ن نور په ښکاره د مغلو سیله بنده کړ، مگر په پټه به یې لمسون کاوه. خوشحال-خان وایي.

مخزن د درویزه، د میا ن نور شیخي پیري
الثالث بالخیر، د همزه خانسي ، میري
دا دري توکه دې پر عزت لري په سوات کې
وخدای و ته ښکاره دي، دبل نشي په خوري
(کلیات ۲ ۹۹ قندهار)

(۱۹۱) سفیه: ناپوه، بې عقل. فقیه: پوه، دانشمند.

(۱۹۲) کنزالدقایق: یعني د ډیرو خبرو خزانه. د حنفي فقه مشهوردرسي کتاب دی. چې شیخ ابوالبرکات عبدالله بن احمد نسفی (مړ ۷۱۰ ق) تألیف کړی دی (عربي) او ډیري شرحې هم لري.

مختصر القدوري هم د حنفي فقه پر فروعو باندې یو مشهور درسي کتاب دی. چې په عربي ژبه امام احمد بن محمد القدوري بغدادي (مړ ۴۲۸ ق) تألیف کړی او ډیري شرحې لري. دغه دواړه کتابونه په مسجدو او مدرسو کې لوستل کیږي.

(۱۹۳) نه د « کنز » د دقیقو څه خبر شوي
نه په نحو د « قدوري» مبصر شوي

(۱۹۴) کتابو نه په سر کیږ دي ځان ملا کا
په هر کلي ، محلت گرځي تیکي ، غلا کا

(۱۹۵) کښېږي هر ع پر ډکوي په ر شو تو نو
ځان قاضي کا ، په غلط روا یتو نو

(۱۹۶) و هر چا له مسئلې د سخاوت کا
خپله خو نه یې کوه ، بلـه غارت کا

(۱۹۷) په مسجد راځه پېنځه وخته اذان کا
چې زکات ، سرسا په نه وي، مسجدوران کا

(۱۹۸) د میراث ما لو له خوره له ظالما نو
نوم په ځان باندې کیږده د عالما نو

(۱۹۹) په دا هسې علم برند کښېږي ملا شي
و عالم ته میراث خور د انبیا شي

(۲۰۰) نه یې کښل زده ، نه لوستل زده ، تل تیکل کا
تعویذ و نه ورکوي ، په دروغ کښل کا

---

(۱۹۳) مبصر : د میم پېښ او د مفتوح صاد تشدید . ستر گه ور، بینا .

(۱۹۶) له دې بیته تر۱۹۸ پورې د پښتو د فصاحت دا التفات صنعت د ی له مخاطبه غایب ته (یې کوه . راځه . خوره . کیږده )

(۱۹۷) سر سا په : د کوچني اختر صدقه .

(۱۹۹) برند : نازان ، مغرور ، مسرور . برنده ځوا نی : هنفو ان شبا ب.
خوشحال وایي : برنده وا ته کښېنه چې دې هه کرم نندا ره .

(۲۰۰) ار : نه یې کښل زده وي ، نه لوستل تل تیکل کا ! مر: لکه متن . تیکل یا تا کل : انتخاب او نښه کول . دلته د یوه خاص عمل نوم دی ، چې دوئخو ربد ن په اوده کړی دوا تا کي ، او ادعا مو خلکو د علاج پوه توتکه ده .

(۲۰۱) په ناروغ يې خوښي لا زيا ته تر روغ
ښښت ، تعويذ ، دعا ، هيکل کښي په دروغ

(۲۰۲) لا رنځور غريب ، صحت نه وي مو ندلی
چې اخون وي اخستو ته ورنيو لی

(۲۰۳) که په ور کړه کې څه د رنګ څه خو تعطيل وي
په غوغا په شورو شر يې قال و قيل وي:

(۲۰۴) چې د سا په خلکو ، قدر قيمت نشته
در نځور مې بې تعويذه صحت نشته:

(۲۰۵) چې رنځور له رنځه خلاص شي ، را ته شا کا
نور به بيا دما تعويذ ، دچا بلا کا ؟

(۲۰۶) د اچې زر هسې نا سا زې کا آغا زې
خپل مقصود ، مطلب حا صل کا په نا سازې

---

(۲۰۱) ار . مر : طشت تعويذ ؟ دلته طشت څه معنی نه ور کوي . اصل يې ښښت = ښاښت يعنې شو ليست دی . چې د کا غذ پرتو تو څه ليکي اوهغه بيا په او بو کې اچوي او په رنځور يې دعلاج دپاره ښښي . هيکل دلته د تعويذ پوښ اوامېل دی .

(۲۰۲) يعنې اخوند بيا دڅه مال اوپيسو داخستلو لپاره په دروازه کې ولاړ وي .

(۲۰۴) دغه بيت او ۲۰۵ بيت دواړه په ۲۰۳ بيت پورې نښتي دي ، او د اخو ند تقرير بيا نوي.

(۲۰۵) ار : نور بيا دما تعويذ دچا بلا کا ؟ مر : نوربه بيادچا تعويذ دما بلا کا ؟ دمتن دول غوره ښکاري .

(۲۰۶) ار ، مر : هسې نا ساز کا ؟ په متن کې دوزن د سمښت لپاره (ې ) زيا ته شوه . يعنې دخيرانې دلاس ته کولو لپاره زرناوړې شروع کا . اونا خوالې وا بې .

(۲۰۷) وا يي : موږ ته چې نظر د سترګو سپک کا:
خپل ايمان به په دا هوسره چاروورك كا

(۲۰۸) په دا عام وګړي هسې هيبت کښېږي دي
چې ددوی په رضا ځي ،هرڅه به پر پرږدي

(۲۰۹) چې څه ترس له خدايه نه کاندې غلول کا
اس به پرېږدي ، زين به باندې په جاهل کا

(۲۱۰) چې ملا د «میان نور» په حکم دروغ سي
هم هغه دسوات په ملك کې سپرې موسي

(۲۱۱) «میان نور» که دخنزیر غوښې روا کا
ملايان به باندې ژر جوړه فتوا کا

(۲۱۲) د «میان نور» مفتيان دسوات په ملك كې دوه دي
الله داد اودوست محمد دواړه ياوه دي

---

(۲۰۷) داخوند دبيان ادامه ده ، يعني اخوند وايي : که موږ ته څوك په سپك نظر وګوري.

(۲۰۸) ار، مر: چې د ديو په رضا؟ ديو داوسنۍ جمع غائب ضمير قديماً ملا ده . چې له (ديو) سره التباس موسي . نوماد لته اوسنۍ شكل (دوی) و كيښ ،چې مراد ځنې اخوندان دي .

(۲۰۹) ار: كه ترس له خدايه ؟ بله نسخه : چې هيڅ ترس .

(۲۱۰) دانوم كله د(ميان) دميم په سكون او كله دميم په حركت استعمال شوی دی .چې دلته زيرلري .

سپرې : دشيخ ملي په دفتر كې هغه مځكه چې د كلي دستانه له پاره وقف وه .يا مطلق وقفي مځكه چې دعامو ګټو له پاره خاصه وه .

(۲۱۲) الله داد خان اودوست محمد خان دواړه ديوسفزومشران وو (وګورۍ تاريخ مرصع ۲۷٦-۳۳۳ )

(۲۱۳) لږ يې علم، لږ يې لوستنه، ډېر تقرير کا
چې بيا نور يې لمسوي، هغه تزوير کا

(۲۱۴) اوس به وايم د بيان نور له حقيقته
چې تر نورو نه، دی لا دی بد خصلته

(۲۱۵) راشه وا وره په دا هومره قباحت
چې په ما باندې يې جوړ کړه تهمت ؟

(۱۶) زه چې چون په اعتقاد کې پاکسني يم
په کندن د رافضي د بېخ کني يم

(۲۱۷) رافضي يې په دا دسې اعتقاد کړم
په درست سوات يې په تکفير په رفض ياد کړم

(۲۱۸) د صديق او د فاروق په عشق کې طاق يم
د عثمان او د حيدر بنده قلماق يم

(۲۱۹) آل اولاد د پاک رسول واړه منمه
امامان نيا ن هم ټول واړه منمه

---

(۲۱۵) ار: جوړ کړه تهمت؟ د بيت وزن نه سمېږي. د متن ټول سم ښکاري.

(۲۱۶) رفض: پرېښوول، ترك كردن. رافضي هغه لښکر بولي، چې افسر پرېږدي. دا د شيعه ډلې هغه فرقه وه چې د حضرت زيد بن علي بن حسين (رض) سره يې بيعت وکړ، او بيا يې دی پرېښود. د دې د شيعېنو تبرا کوله (غياث)

(۱۱۷) تکفير بل څوك كافر گڼل او كافر كول

(۲۱۸) مراد حضرت ابو بكر صديق (رض) لومړی خليفه او حضرت عمر فاروق (رض) دوهم خليفه دی په دوهمه مسرۍ کې قلماق د ترکی قبيلې نوم دی يعنې د خلفا- وو داسې مريي يم لکه قلماق پخوا به د قلماقو ترکانو نوښخه ځېنې ښکلي زلمي د مريي په توګه پلورل کېدل.

(۲۲۰) یزید پلید په کار باندې لعنت دی
چې د آل سره یې کړی شرارت دی

(۲۲۱) د ید ذات مکر په علم کې لا بد شي
حبشي چې په مخ خال کښېږدي لا بد شي

*

(۲۲۲) بو کتاب دی «درویزه» سره جوړ کړی
د سوات خلك یې له کل عامه موړ کړی

---

(۲۲۰) یزید د معاویه زوی دا موي کورنی دوهم پاچا و (۶۰-۶۴ ق)

(۲۲۱) یعنې د بد ذات تمسري مکراوچم، په علم او پوهې کې ضرور پوژند ل کیږي . لا بد : د بې په پېښ یعنې خامخا او هرو مرو .

(۲۲۲) ار: خلق کل عالم موړ کړی؟ بله نسخه: خلق یې له کل عالم موړ کړی

د معق دول صحیح ښکاري. اخند درویزه د گدای بن سعدي زوی (۹۴۰-۱۰۴۸ ق) د پښتو قدیم لیکوال د مخزن الاسلام پښتو او ارشاد الطالبین او تذکرة الابرار او نورو کتابو مؤلف چې د مغلولو دوست او د پیرروښان سخت مخالف او یو قشري متعصب اخوند و . مگر په پښتنو کې یې ډېر عزت درلوده او خلکو مانه . ځکه چې د درویزه د پیروانو او د خوشحال خان ترمنځ فکري او سیاسي اختلاف و، نو په سوات نامه کې یې درویزه غندلی او تر انتقاد لاندې کړی دی د دغه اختلاف په منځ کې چې ځینې عقیدوي درنې خبرې هم پکې دي، زه د لته څه نه وایم مگر دا د بې پلوه یې پښتو ته گټه رسولې او په نتیجه کې یې د پیرروښان خیرالبیان او د اخوند درویزه مخزن او د خوشحال خان دغه سوات نامه او ځینې نور انتقادي آثار رازیږولي دي. د رفض او تلعین او د امام حسن (رض) د شهادت او د یزید بن معاویه په باب کې دا خوند درویزه او خوشحال خان عقیدوي اختلاف چې په دې بیتو کې ښکاره شوی دی په خپله په دوی پورې اړه لري (که څوك غواړي د مخزن پنځم مخ دې و گوري) مگر د لته د خوشحال خان انتقاد د مخزن اسلام پرادبي ناوړو باندې د پښتو ادب د نقد په تاریخ کې ډېر دروند مقام لري، او یو گټه ورا ثر گڼل کیږي او د مخزن ادبي کمزوری د غوروړدي (د خیرالبیانه سره).

(۲۲۳) نامعقول، مجهول بیان یکې بې ځایه
یکې بد وسید وایه ، یزید ستایه

(۲۲۴) د احوال به یې بل فصل کې اظهار شي
په مطلب نظر لوم چې در اشکار شي

(۲۲۵) ناګهانه چې دما په نظر کښهوت
په داحرف په داویل سې نظر پریوت

(۲۲۶) چې لعنت به په یزید باندې وایې نه
چې په رفض کې غره بې حده دي له

(۲۲۷) دحسین په مرګ یزید کله راضي و
بلکې دی د ده دخون متقاضي و

(۲۲۸) امرګان يې دحسین په مرګ قصاص کړل
زه حیران شوم دیزید په هسې خاص کړل

---

(۲۲۳) په دې بیت کې هم (وایه، ستایه) التفات دی له مخاطبه غائب ته.

(۲۲۴) ار: ددواړو مسریو قافیه اشکارده ؟ مر: لکه متن .

(۲۲۶) واپینه- د ینه دواړه فعلونه په آخر کې د ترنم (زه) لري، نافي نه دي.

(۲۲۸) مر: امروګان . ار: امرګان یعنې امیران اوسرداران چې دهند په مغلیه دربار پورې تړلي وو .

او په پښتو کلاسیك ادب کې امرایان = امراګان هم راغلي دي. چې تلفظ به يې دالف په پیش وي. اما قصاص دیوه وژلي دمرګ په بدله کې قاتل وژل یادنا قصو کړو اندا مو په بدله کې هغه اندام ورناقص کول. ددې بیت په لومړی مسری کې کړل ماضي جمع غائب اوددوهمې مسری کړل مصدري معنا ورکوي یعنې کړن او کول.

(۲۲۹) بیا یې داو یکې کښلي دي، له دینه
چې په آل به رافضي درود وایي نه

(۲۳۰) غه جاهل ملا چې دا کتاب و کښلی
ما په داخبرو دی و، ډېر ښکنځلی

(۲۳۱) مخامخ یې داخبرې کړې نما یې
چې ته هم سکه رافضي یې، چې دا وایې!

(۲۳۲) ردبدل ددې خبرې ډېر مذکور شو
دا مذکور په واړه سواتو کې مشهور شو

(۳۳۳) هغه نیم ملا روان هو و «میان نور» ته
خس خاشاك یې سره و لو ستل تنور ته

---

(۲۲۹) یعنی د دین په حواله یې د ایکـې کښلي و. چې رافضي به هوا زې پر آل محمد (صلعم) درود وایي. (نه) تر دې فعل وروسته د ترنم لاحقه ده

(۲۳۰) غه د هغه ضمیر اشاري مخفف شکل دی. دلته مراد اخوانددرویزه ندی بلکې هو بل ملا دی چې د مخزن کاتب به و ځکه چې په دغه کال (۱۰۸۶ ق) درویزه ژو ندی نه و او نه دد رویزه په مخزن اسلام کې دغسې تصریحات شته. ښایې په دغه نسخه کې په هوه بل متعصب سړي یا دغه جاهل کاتب لاس وهلی وي. او څه نامشر وعې خبرې به یې پر اضافه کړې وي. چې خوشحال خان د وفې غند لی دی.

(۲۳۱) سکه: دسین په سکون د تا کید په ډول د (ـخوـ نوـ ځکه) پرځای استعمالیږي. خوشحال وایي: که د کښلو د دیدن سینه گناه ده ـ سکه خوشحال خټک درست عمرجنایت کا (کلیات م قندهار)

(۲۳۲) په واړه سوات کې مشهور شو؟ په دې ډول د بیت دو زن پوره کیږي. مگر که مشهو رد (م، ش) په زور و لو لو.

(۲۳۳) ار: سره ولو ستل؟ دلته لوستل = لوتل: تیتول او پاشل او ارتاوول دي. یعني هغه نیم ملا، دمیان نور د قهرتنور په خس و خاشاك به پسې تو د کړ.

(۲۳٤) سرې لمبې د «میان نور» په کور شوې بلې
نه وڅوك چې يې اوبه کړي باندې تلې

(۲۳٥) ملایان شیخان يې واړه سره تول کړه
کله يې واړه په داوړ په دا اشول کړه

(۲۳٦) «میان نور» وې چې «اخوان» زموږ امام دی
درست مخزن پرې نازل شوی په الهام دی

(۲۳۷) په مخزن باندې چې بد وايي کافر دی
د کافر قتل ، په شرع معتبر دی

(۲۳۸) چا به داوې : چې لعنت په یزید وايي
رافضي دی ، چې دوازده امام هم ستايي

(۲۳۹) چا به داوې : نه په توره د کشتن دي
رافضي په سرو لمبو کې د سوختن دي

(۲٤٠) چا به داوې : چې د ملکه ديستو دي
چا به داوې : چې توبه ده ، د ویشتو دي

(۲٤۱) یوه لویه هنګامه شوله برپا یه
چې يې زړه ، هسې خوږې په ما وايه

---

(۲۳٤) تلول : درې توري يې زور لري : تو يول يهول . يعنې څوك نه و چې اوبه پر تو يې کړي .

(۲۳٥) ار : وړر په داګچ ګول کړه ؟ مر : لکه متن . او دا صحيح دی . ځکه چې اشول چيغو او نارو ته وايي . خوشحال ويلي دي :دخوشحال
دد،د علاج په يوه خدای دی —چې له درده سره تل شوري ،اشول کا .

(۲۳۹) ار : رافضي په سرو لمبو کې سوختني دي ؟ مر : لکه متن .

(۲٤٠) يستو : ايستل ، اخراج . ويشتو : ويشتل ، رجم .

(۲٤۱) وايه : د لته التفات دی له مخاطبه غايب ته .

(۲۳۲) ملکان د یوسفزیو لکه خرو نه

په گندگی سره اړلي خولې ، سروته

(۲۳۳) نه یې علم ، نه دانش ، نه فهم ، پوهه

خودوستي د دروېزه باندې انبوهه

(۲۳۴) په ویل د دروېزه عقیده خوسره ؟

لکه عین په آیت ، په حدیث هوسره

* * *

(۲۳۵) دروېزه چې بیان کړی خپل کتاب دی

نوم یې مخزن الاسرار (؟) کړی جناب دی

(۲۳۶) هر بیان یې ناموزون ، مجهول ، بې رنگه

خالي پاتو له دانشه ، له فرهنگه

---

(۲۳۵) مخزن الاسرار دنظامي فارسي منظوم مثنوي دی . ددروېزه پښتو کتاب په مخزن الاسلام یا مخزن اسلام مشهور او خورا ډېرې خطي نسخې یې شته . چې په هند کې مکرر چاپ شوی و . او په ۱۹۶۹ م کال د پېښور اکاډیمی د پښتو غلي تقویم الحق کاکاخیل د مقدمې سره یو ځای چاپ کړ . دخوشحال خان دغه انتقادي نظر دمخزن اسلام پر اد بي خوا دی . که نه نو دمخزن اکثر بحثونه داسلامي فقه او عقاید و له کتابو څخه راخستل شوي دي مگر دا نده معلومه چې دغه کتاب نوولي خوشحال خان مخزن الاسرار بللی دی ؟ مخزن الاسرار خود نظامي گنجوي فارسي مثنوي دی چې د ۵۷۰ ق په شاوخوا کې نظم شوی دی .

(۲۳۷) که یوه مسره پهشل، بله پهسل ده

نامربوطه، نا موزونه، پهویل ده

(۲۳۸) قافیه یې لام ودال سره وهلی :

په ردیف کې یې نون و او سره پیولی

(۲۳۹) قصیده د «بوصیري» ترجمه کړې

عربي یې تر پښتو مضحك راوړې

---

(۲۳۷) او، مر: یوه مصرعه ؟ پهپښتو یې مسری یا مسره بولي. رښتیا هم داده، چې مخزن نهپوره نظم ښکاري او نه نثر. مسری یې ظاهراً فرق لري. خوپه پای کې سجع یا قافیه راوړي لکه: «امام عمر نسفي هسې و یلي مبرهن دي- چې صوفیان دحق دوستان دي مدزړه په پاك کردن دي» (مخزن ۵۸) که دغه دوې مسری و تلو نولومړی (۱۶) اودوهمه هم ۱۶ سپن لري. دگرترد ې ورو ستهٔ مسری گډې وډې سره لیکل شوي دي چې ظاهرا پیولی نظم نهښکاري. مگر که په دقت لکه او سني نظمونه هره مسری جلاجلا ولیکو. خینې د سون (سهلاب) پهحساب برابرېږي. خو خوشحال خان دخپل فصیح شعرپه تول دمخزن لیکونه هم تلل. نو ځکه سم په نظر نه ورغلل او سخت انتقاد یې پر و کړ.

(۲۳۸) لکه لام او دال چې د بیتو په پای کې راوړي. یا نون - واو په ردیف کې لکه نان - ناو، یا پان - پاو.

(۲۳۹) بوصیري: اول حرف پیښ او صا دزبر لري. بو صیر د مصرپه بني- سو یف کې یو ځای دی. شرف الدین ا بو عبدالله محمد بن سعید بن حماد (۶۰۸ - ۶۹۳ق) عربي شاعر دغه ځای ته منسوب و. چې دشعر دیوان یې چاپ شوی دی. دده یوه مشهوره قصیده البرده خورا مشهوره ده. چې گرد ۱۶۲ بیتو نه *

* کیږي اودایې هغه وخت نظم کړه، چې د ګوزڼ رنځ (فالج) نیولی و. او محمد (صلعم) یې په خوب ولید. چې هغه خپل مبارك لاس پرسرور تېر کړ، نود ده رنځ ښه شو. دا قصیده دخدای داستاځي په مدح اوسیرت او د نفس په غندنه او په دعا کې وېلې شوې ده، چې لومړی بیت یې دا دی: امن تذکر جیران بذي سلم - مزجت دمعاً جري من مقلة بدم (کشف الظنون ۱،۳۳۱- الاعلام ۷،۱۱) دا قصیده په عربي او نورو شرقي ژبو ترجمه او شرحه او تضمین شوې ده. په لسو کتابو نه پر کښل شوي دي، اوداخوند درو بزه په مخزن کې هم، دې هم بیان (ص۹-۳۱) د دې قصیدې پښتو ترجمه ده. چې داسې شروع کیږي: ګوندې ستاذ ي سلم یاران یاد بږي. ځکه اوښکې دي له وینو ګډې وېې د باران په دودوبږي (ص۰۱) په پای کې وایي: دا کتاب سې عربي و، د نبي صفت کړی محمد بوصیري دی - دې فقیر ځنې پښتو کړ - هرچې یاد یې په دعا کا، هغه کس دې هم په دین هم په دنیا نه زهیر بږي (ص۱۳) ددې قصیدې ترجمه، دپښتو په ایکلي ادب کې دغور او پرتلې او کره کتنې وړ ده چې لومړی انتقاد یې هم دخوشحال خان په دغو بیتو کړې دی، او پر لفظي او ادبي هنګ یې انتقاد کړی دی، نه داصلي قصیدې پر موضوع او معنا.



(۲۵۰) هر هر بیت د قصیدې چې د ر سرجان دی
په پښتو کې تراوو بشو لا اوزان دی

(۲۵۱) معما د «آذري» ترجمه کړې
تصوف یې وعالم و ته نومړې

(۲۵۲) ترجمه د «شاه ناصر» یو څو اشکاله
وعالم ته جوړه کړې له مقاله

---

(۲۵۱) نورالدین حمزه آذري بن عبدالملک طوسي د فارسي متصوف شاعر او شیخ دی چې څو کتابونه یې تألیف کړي او دشعر دیوان هم لري. د ۸۲ کالو په عمر په ۸۶۶ق کال مړ او په اسفراین کې ښخ شو (حبیب السیر ۳ر۱۶ مجمع الفصحاء ۳ر۸) د آذري ځینې اشعار معما غوندې دي، چې معنی یې ښکاره نه ده. اخوند درویزه په مخزن کې دده یو معما غوندې بیت: در ته جلباب عشق دست دوشه خفته اند — دست نگردي بعین عین بلا گفته اند. داسې ترجمه کړی دی: «د شاه تر څادر لا ندې دوه دست شاهان اوده دي سکه مستي یې په عین دکړه چې د زلفو کاته یې بې جلاده نه دي» (مخزن ۱۱۰) د دې بیت اصل او پښتو ترجمه مبهم دي، چې هرڅوک به یو راز مطلب ځنې اخلي. خو درویزه د تصوف رنګ ور کړی دی او خوشحال خان هم پر دغه باندې په دې الفاظو انتقاد کوي چې: دغه معما د تصوف په څادر کې نغښته شوې ده! اصل او ترجمه یې دواړه مبهم دي.

(۲۵۲) شاه ناصر: مراد حکیم او لیکوال او نقاد د مبلغ ناصر خسرو بلخي (۳۹۴—۴۸۱ق) دی. چې د فارسي مشهور شاعر ګڼل کیږي. د ده فارسي سفرنامه هم مشهوره ده، د بدخشان په یمګان کې ښخ دی. دیوان یې څو واره چاپ شوی دی او ډېرې خطي نسخې یې هم شته. اخوند درویزه په مخزن کې د ناصر خسرو له یوې قصیدې څخه چې ګرده ۳۶ بیته ده. دوه بیتونه را نقلوي: *

* بالای نه‌سپهر دو گوهر سدورانند    کز نور او دو عالم آدم منوراند؟
هستند نیستند . نهانند و آشکار    چون ذات ذوالجلال نه جسم و نه جوهراند؟

په دې قصیده کې ناصر خسرو (جان‌خرد) دوه اسماني عنصره ستايي «جان‌وخرد روندە براین چرخ اخضر اند» اواخوند درویزه یې د اسي ترجمه کوي چې اصل يې خورا فصيح او ترجمه يې ناوړه ده . نوځکه خوشحال هغه «وعالم تەجوړه کړي» ګڼي او انتقاد پر کوي : «په نه‌سپهر باندې دوه‌گوهره دي ځليږي ، سکه په نورد هغو دواړو ، دا آدم له دواړه کونه پرتاوېږي ـ نه جسم نه جوهر دی او معنی يې لکه خدای هسې رغيږي (مخزن ۱۱۱) د ناصرخسرو کرده قصیده په (دیوان ناصرخسرو . ص ۲۳۲ کې) راغلې ده (د تهران چاپ ۱۳۵۳ ش) چې هم په ادبي لحاظ هم په معنا او مفهوم کې خورا غوره گڼله شي .

 

(۲۵۳) مسئلې يې نظم کړي په پښتو دي
در ته څه وايم چې څه دي؟ د پښتو دي؟

(۲۵۴) په داسې شان کتاب يې مباهات دي
د جامي تر «هفت اورنګ» ور ته ناوبات دي

(۲۵۵) ګنده پز، د ګنده خور سره جوړېږي
خاص په خاص، او عام په عام وېل خوښېږي

(۲۵۶) په حيرت به واړه ګوتې و چيچلې
د «اخون» په «مخزن» چا ګوتې کښېښوې

(۲۵۷) هر سړی چې په مخزن باندې څه وايي
په دنيا کې تر ساعته به څوك پايي؟

---

(۲۵۳) په فقهي اصطلاح مسئله د فقه يا عقايدو يوه خبره ده. په پښتو مسئله کول د فقيه هغه حالت دی چې ناست وي او خلك پر را ټول وي. او دی ديني خبرې ور ته کوي.
د پښتو دي؟ په ار، مر دواړو کې د ځمې ليکلي دي؟ شايي چې داسې وي: د پښتو دي يعنې د پوښتلو او بحث وړ، يا د پښتو = ايستلو وړ.

(۲۵۴) مباهات: فخر، مرلوړي چې په ار، کې مهابات (؟) چاپ شوي دي.
ناوبات: ګران. نازنين. عزيز مولوي عبدالرحمن جامي د نظام الدين احمد دشتي زوی د هرات مشهور صوفي، شاعر، عالم او مفکر دی (۸۱۷-۸۹۸ق) چې د ده له منظومو آثارو څخه هفتو رنګ (د بنات النعش اوه ستوري شمالي قطب ته نږدې) د د اوو کتابونو مجموعه ده:
(۱) سلسلة الذهب (۲) سلامان وابسال (۳) تحفة الاحرار (۴) سبحة الابرار (۵) يوسف — زليخا (۶) ليلی و مجنون (۷) خردنامه اسکندري. هفتورنګ د نظامي ګنجوي او اميرخسرو دهلوي د خمسو په دول ويل شوی او اودل شوی دی. چې شعريې ډېرخوږ او د ادبي ارزښت وړ شميرل کيږي. فکري او ځيالي تي اړخونه يې هم ځلان دي.

(۲۵۶) ګوتې کښېښول يا ګوتې ايښوول: انتقاد کول = د خوشحال خان بلهـ اصطلاح ګوت مقلي.

(۲۵۸) ملکان، شیخان یې واړه سره ټول کړه
پخول سحر په افسون یې ګیچ او ګول کړه

(۲۵۹) یو «میاخان» و، بل «مانړکی» و، بل «سنګر» و
یو سنګر څه خو په یو هم کې بهتر و

(۲۶۰) د لښکر خټک په کلي کې زه ناست وم
فراغت د توت تر سیوره لاندې نماست وم

(۲۶۱) د اسګان را له راغله، زه یې ویښ کړم
په لیده او په راتله یې په تشویش کړم

(۲۶۲) په خندا یې راته و وې دا خبره:
اوس ترو پاڅه خوشحال خانه زوره وره!

(۲۶۳) په درست سوات دې غوغا ګډه کړه، ته خوب کړې!
نه دې غم، نه دې پروا، نه تلا توب کړې!

(۲۶۴) «میانور» در له راغی ناست په رود دی
خبر وله لره راغلو دمو پر دود دی:

(۲۶۵) چې دعوا د چا په منځ کې شي پیدا ده
ملکان یې سره ژغوري له فسا ده

---

(۲۵۹) میاخان او مانړکی او سنګر درې سره د سوات د یوسفزو ملکان وو.

(۲۶۰) او: د دواړو سره یو پای: ناست وم؟ س: نماست وم؟ ښایي چې صحیح ډول یې ملاست وي یعنې غځېدلی، بیده، آرام کړی.

(۲۶۲) او، س: ترو پاسه؟ مګر پاسېدل او پاڅېدل فرق لري. د لته به پاڅه (ولاړ شه) صحیح وي.

(۳۶۳) او، س: طلا طوب؟ نه پوهېږم چې داولې په عربي (ط) لیکي تلا توب خو پښتو کلمه ده یعنې بې قراري، نا آرامي. خوشحال وایي: په درسته ورځ چې تلا توب کړې ـ د دنیا چارې په څه آشوب کړې!

(۲۶۴) یعنې د سوات د رود پر غاړه ناست دی.

(۳۲۸) د ماروغه په رښتيا ، هدده د روغه
د «میان نور» سره مې وشوه ، هسې روغه

(۳۲۹) فضيحت ، رسوا تر کوره پورې ولاړ شو
دوگړي اعتقاد څنې ولاړ شو

(۳۳۰) چې مې وليده يو هسې کږ زبان و
چې په مکر ، په تزوير لکه شيطان و

(۳۳۱) په اعوذ مې دخداى په حکم خوار کړه
دشيطان تولى مې واړه تار په تار کړه

(۳۳۲) ماوې دی په د مخزن غلطي ور کا
دی لا نامتدی د مخزن سر د سر ور کا

(۳۳۳) بيا په هو رنگې تعظيم دمخزن کاندی
غلطي بې ترې ونکښه لا ندې پاندی

(۳۳۴) مدعي سره دخداى د پاره بد يم
آلوده نه په غرض نه په حسد يم

---

(۳۲۹) ار: لکه متن . مر: پورې لاړ شه ... اعتقاد ورڅنې لاړشه . د متن دلو مړي ولاړ اول توری ساکن دی . ددوهم ولاړ ، واوزور لري . يعني دوگړو اعتقاد له ميان نور د څخه ولاړشو (برخاست) او کم شو.

(۳۳۰) ار : کژ زبان = کج زبان. دمتن کږزبان د کوږ ژبي مفرس شکل دی.

(۳۳۱) يعني په اعوذ بالله (پناه غوارم په خداى ، د ترټلي شيطان له لاسه) مې دميان نور ټوله بېره کړه . مر: خوار کړو ... په تار کړو.

(۳۳۳) يعني د غلطى نخښه يې لاندې باندې نه پرو کښله يا يې لاندې باندې غلطي نه څنې و بستله

(۳۳۴) ار: نه په غرض او نه په حسد يم ؟

(۳۳۵) که په دا طور او ږه وي په درست سوا شي
مګر هاله دعا سیله مکافات شي

(۳۳۶) بیخ بنیادی په جهان کې دو کړودی
په جهان کې پاتو کله د پر بیهود ی

(۳۳۷) چې داهسې عالمان هسې شیخان شته
په جهان کې بدان ډیر دي لږ نیکان شته،

(۳۳۸) د د نیا حرام ،حلال وبلا، ونغاړي
هغه واړه مدعي دي چې خدای غواړي

(۳۳۹) په دروغ په بې شرمي عمر تېر کړي
په روش دګدایی یې مال ډېر کړي

(۳۴۰) د هغو به څه طاعت، څه عبادت وي؟
هغه کوم به یې دعلم برکت وي؟

(۳۴۱) نمرود ، روژه چې د ریا د پاره کړي
له اسمانه به لعنت باندې وریږي

(۳۴۲) چې د خلق قبولیت یې په غرض وي
د هغه طاعت، طاعت نه وي، مرض وي

(۳۴۳) چې په صدق، په اخلاص سره اداشي
په یوه سجده ، جنت باندې رواشي

(۳۴۴) که هزار ساله سجده کړي بې اخلاصه
په داهسې نمانځه نه وي غاړه خلاصه

---

(۳۳۵) سیله طرفداري ،حمایت، ورستره.
(۳۳۸) وبله: بوله بله.
(۳۳۹) او: دګدایی مال.
(۳۴۱) او: سونځ.

(۳۴۵) شیخ «میان نور» چې خجل ورغی تر کوره

په داخېل وېل پښېمان شو، راشه گوره

(۳۴۶) هر ملك سره خواب ددې مکاردی

په کمي په قصد د ماد کارو بار دی

(۳۴۷) د لښکرو په وتلو، اولس ساز شي

بیا دده له نعله، بل نعل آغاز شي

(۳۴۸) دانا قص چې نېښ همیش وهي په کار کې

گوره څه شي، د لښکرو په کاروبار کې ؟

(۳۴۹) پو سفزیه خود ننگ دنا موس نه دي

خوځ چې نه کا، دهغه سري په خوله دي

(۳۵۰) کې په خوله د «میان نور» نه کا ښکر ې

سکه په سر یې د لښکرو خاورې سرې



(۳۴۸) او: چې بېش ؟ مر: نېش. نېش د لته معنا نه ورکوي ، نېښ لشه پاچنگ وهل په کار کې خرابی پیدا کول. مخالفت اودښمني کول دي( کامل: مرصع ۱۲۲۶)

(۳۵۰) سکه: نو. بیا. پس. خاورې سرې: خاکو کول. وگوری ۶ بیت ۷۰.

# فصل

(۳۵۱) هغه وخت چې پیر روښان اسا د بنیاد کړ
پښتنو ورسره ټینګ کار د فساد کړ

(۳۵۲) پښتانه په هغه دور پیر پرست وو
څوک مرید د شاه عیسی، څوک د سرمست وو

---

(۳۵۱) بایزید (پیر روښان) د عبدالله زوی په قوم اورمړ د پښتنو مفکر لیکوال مبارز لارښوونکی (۹۳۱ - ۹۸۰ ق) د پښتو خیر البیان او عربي مقصود المؤمنین او صراط التوحید او نورو آثارو مؤلف، چې د هند د مغولیه پادشاهانو سره د ملي ازادۍ د ازادي خواهی او پوره مبارزه وکړه. او د مغولو ګوډاګیانو دی تکفیر کړ. او د ده حرکت یې فساد وباله. د لته خوشحال خان هم تر ډېره نا وړه تلقین لاندې، دی په فساد غندلی دی، خو د پښتنو د آزادۍ جنګ تر خوشحال د مخه د غه پیر روښان نښلولی و. نو دی موږ له نورو خلکو تېر ایستونکو پیرانو له ډلې بولو.

(۳۵۲) شاه عیسی: میان عیسی د سند د بکهر له ساداتو څخه بزرګ هد و. چې په اټک کې اوسېده. او د ده یادونه د اخوند درویزه په کتاب کې شوې ده. د ۹۸۰ ھ حدود (وګورئ تذکرة الابرار والاشرار ۲٦۱ - ۲۹۷) یو بل سید عیسی هم پېژنو چې د عبدالوهاب اخوند پنجو ورور و، ښایي چې د غه د واړه یو سړی وي.

سرمست: په دې نامه څوک نه پېژنم. خو یو ملا دست زند د پښتو سلوک الغزات مؤلف او شاعر د اخوند ښالاك توغي مرید او شاګرد پېژنو، چې د ۹۵۰ په شاو خوا کې به ژوندی وي. او تر خوشحال خان لږ څه د مخه ژوندی و. ښایي د لته د غه مست مراد وي (وګورئ پښتانه شعرا ۱ ر ۷۷)

(۳۵۳) درویشان بخره ورکزي، افريدي شول
هغه خوښ په رهزنۍ په عقیده ي شول
(۳۵۴) دقاسم په بخره واړه غوریه خیل وو
دنگر پیرو ته د بنو شیتک ایل وو
(۳۵۵) خټک واړه بوبکري، پیر منصوري وو
له بدعته له فساده په دوري وو

---

(۳۵۳) ورکزي او افریدي دپښتنو دوه لوی قومونه په تیراه او کوهاټ کې اوسي چې درویشان پیر مریدان وو. عقیدي: عنادگري. تربور گلوي.

(۳۵۴) ښايي چې مرادشیخ قاسم بن شیخ قدم متي زی خلیل غوریه خیل وي (۹۵۶ - ۱۰۱۶ ق) چې د پېښور په دواوه کې د قادري طریقې مرشد و. اوتذکرة الاولیای افغان مؤلف دی (تذکرة الابرار ۲۰۵) یابه مراد اخوند قاسم د عبد الله یا یوسف خیل هنوار زوی وي. چې د پښتو فواید الشریعت مؤلف او د اخوند درویزه د ادبي مکتب غړی دی. او تر خوشحال خان لږ څه دمخه و. اما ډنگر پیر (پیر لاغر) زه نه پیژنم: دونه ښکاري چې دخوشحال ترعصر دمخه دبنو د شیتکو په قوم کې دخلکو پیرو.

شیتک د ککي زوی او د کرلاڼ لمسی و. چې خټک او افریدي او زدراڼ هم د ککي او کرلاني لمسیان گڼل کیږي (خورشید جهان ۲۳۹. مخزن افغاني ۲ ر ۹۰۵)

ایل: مطیع، فرمانبردار. د په قدیم ادب کې ایلاتې د اطاعت او فرمانبرداری په معنا وه.

(۳۵۵) ابوبکر او پیرمنصور دواړه تر خوشحال خان دمخ (د ۱۰۰۰ هـ حدود) دخټک پیران تیر شوي دي. چې دخوشحال خان له دغه بیته یې مونږ پیژنو.

خو دا چې خوشحال خان خوندي نقادسړی دد وی پیروان «له بدعته او فساده لیرې» گڼي، دا ښکاري چې دوی به ښه خلک وو. دا خوند درویزه په تذکره کې یو «ابوبکر قندهاري پیر خټک» یاد شوی دی. چې اصلاً متي زی خلیل او د شیخ گته له کړوسیانو څخه و بابکر خیل متي زي ده ته منسوب دي. ښايي چې دلته به دغه سړی مراد وي اما پیرمنصورد پیر عمر بابړ زوی او د بنو او پښور ترمنځ دخټکو پیر و.

(٣٥٦) په مذهب کې درست ختك سني مذهب دی
اما پیرووته له جهله لکه ربه‌دی

(٣٥٧) که په دا سبب کافر وي، گوزي وینه
که‌نه واړه په‌مذهب کې سني دینه

(٣٥٨) بو سفزیه همه واړه عیسا یي وو
ملکانو سره که پسوا یي وو

(٣٥٩) قاسمي، شاه عیسایي سره په‌جنگ وو
روښاني پیر منصوري سره دارنگ وو

(٣٦٠) دوو بزه له یوه لوریه را پیدا شو
په لږ عام په دا ملك کې، لوی ملا شو

---

(٣٥٧) مر: کمه واره ؟ ترکیب داته « که نه » سم ښکاري. چې په (از) کې چاپ‌شوی دی. په وینه (وی + نه) دینه (دی + نه) کې (له) دتر نم او وزن لپاره نښلولی شوی دی.

(٣٥٨) عسیاني: یعنې دهغه شاه عیسی پیروان دی چې د مخزني نوم یې ٣٥٢ بیت کې را غی:

عیسا یي (د حضرت عیسی (ع) امت = نصرانی) نه دی. سوایي: سو د خوږ (وگوری ١١٨٤ بیت)

(٣٥٩) د شیخ قاسم سلیماني غوریه‌خیل یادونه دمخه په ٣٥ بیت کې تیره شوه.

(٣٦٠) له‌دې بیته ښکاري چې دوو بزیزخیله په پښتنو کې نه‌وروزل‌شوی او له یوه بل (لوري) راپیدا شوی و (یعنې د هند له خوا را استول شوی و) او داته یې په‌پښتنو کې د (حال تر مشا هدې) ورو سته‌دمخزن‌په کتاب لاس پورې کړ و

(٣٦١) چې يې حال د دې عالم مشاهده کړ
خپل کتاب يې په کاغذ مسوده کړ

(٣٦٢) د زنبران خيرالبيان يسې و ليدلی
هغه هم مجهول بيان و ناپسندلی

(٣٦٣) ده چې خوشې ميدان بيامو ند سخنگوی شو
په ويل کې يې چې زړه وه هسې توی شو

(٣٦٤) هغه وخت په پښتنو کې علم نه و
د روېزه تر مجتهدو ر ته لا ښه و

(٣٦٥) په مذهب سني مذهب وه خارجی شو
د يزيد په ستايش کې ماهر جی شو

---

(٣٦٢) د فصاحت او بيان په لحاظ او د پښتو ژبې د نثر او نظم په معيار، په رښتيا خيرالبيان مبهمې او ناپسندلې خوږې لري

(٣٦٥) خارجي : په ٣٧ هجري قمري کال (٦٥٧) حضرت علي (رض) او معاويه بن ابوسفيان تر منځ په صفين کې جنګ وچې ګرد، او يا زره تنه پکې مړه شول . تر يو مل اولسو ورځو تر ستړه دوارې خواوې په روغه راضي شوې او دحضرت علي له خوا ابو موسی اشعري او دمعاويه له پلوه عمروبن عاص دحکميت (منځ ګړيتوب) لپاره وټاکل شول . دې دوو منځګړو د اسره ومنله ، چې علي او معاويه دواړه دې له خلافته خلع شي او مسلمانان دې په ګډه يو بل خليفه وټاکي په دې واقعه کې ځنې مسلمانان د حضرت علي پرخوا پاته شول چې «شيعه» وو . دشام خلکو د معاويه سره بيعت وکړ . يوه ډله نور مسلمانان ووچې و يل يې «لاحکم الا الله» دوی پر حضرت علي باندې خروج وکړ نو يې دوی «خوارج» بلل *

*چې مفرد د کلمه يې «خارجی» ده او وروسته دنو رو اسلامي هيوادو (او افغانستان) په تاريخ کې غټه برخه لري . او ددوی عقيدې هم خاصه بڼه درلوده (وګورۍ افغانستان بعد از اسلام (۸۷۷) په دوهمه مسری کې مارجی يعنې داو ر ورۍ يا شيطاني . خوشحال اخوند درويزه ځکه خارجی بولي ،چې درويزه هسې ويلي و: «اوس دي هيڅوك پريزيد لعنت نه وايي ،مګر له ګمراهانو چې په رفض غرهدينه بې حده ـدوی وايي ،ی دحسين په مرګ راضي شو ، دی کافر شو. دا خبره بيهوده ده . ولې صحيح خبردغه دی چې يزيد اهل قبله و مصلي و د و لس امراء يې پر قصاص کړه . دا ميرحسين (رض) په مرګ ناراضي و... (مخزن ه).



(٣٦٦) ملنګانو به يزيد ته کړې ښکنځلې
درويزه به د يزيد دوزې بللې

(٣٦٧) خود نفس او د هوا په کار يې سخ شو
ملنګان چې ورکېدل په ده به سخ شو

(٣٦٨) ملنګان يې واړه ويستل له صواته
دم يې وواهه له کشف و کراماته

(٣٦٩) په دا فن يې د درست سوات عالم مطيع کړ
و عالم وته يې خپل کتاب بديع کړ

(٣٧٠) هيڅ يې نه کاته د بدوو فساد ته
نقش يې کښېنا وه په مکر خپل اولاد ته

(٣٧١) «درويزه» د درويزې او ګره خوړلې
په دا مکر يې حلوا سره لړلې

(٣٧٢) چې يې توره وېنځه هم نه وه دوړاندې
قچې قچې يوسفزي يې شوې تر لاندې

---

(٣٦٦) دوزه : خوشې او بېهوده خبره ، دوزې بلل : ناوړه خبره کول .

(٣٦٧) سخ : خوښي . بخت . خوشحال وايي: سخ د آينې دی چې دې مخ وته تل ګوري
يعني چې ملنګان د علي او حسين (رض) مقتل بولي به له منځه وتل د ده به خوښي زياتېده .

(٣٦٨) يعني د کشف او کراماتو دعوايې وکړه .

(٣٦٩) د لته په وزني ضرورت د سوات سين ساکن ويل کيږي . بديع : نوی او عجيب (غياث) .

(٣٧٠) يعني خپل زامن يې هم د پيري او مريدۍ په فکر وروزل . لکه کر يې داد چې هم پېرو .

(٣٧٢) د قاف په زېر يعني ډلې ډلې ، ټولې ټولې (ظفر اللغات) .

(۳۷۳) یوسفزي به په دا کار کې بد کېښي کا
چې د هر یوه کم ذات سره خویشي کا

(۳۷۴) په هغه آوان اکبر پادشاه، پادشاه و
واړه خلق د پادشاه سره ګمراه و

(۳۷۵) شاه عیسی ته به یې وړې د زرو بدرې
و بلوټ ته اوره ور تلې د خلقو سدرې

(۳۷۶) سر هسې دي یې په کلاه په شجره ده
که پیري مریدي داده، مسخره ده

---

(۳۷۳) له دې ښکارېږي چې خوشحال خان، اخوند درویزه پښتون نه باله.

(۳۷۴) جلال الدين محمد اکبر د همایون زوی د بابر لمسی (۹۶۳-۱۰۱۳ ق) د هندوستان لوی پادشاه چې یو نوی غونډي کې «دین الهی» یې خپور اوه. او اسلامي علماوو نه منانه. درویزه وايي: لا رښته د دين وه پاتې چې پادشاه زموږ اکبر وـ دی د نفس په لاره تلی، او له دېنه یې خپرو (مخزن ۱۵۷)

(۳۷۵) بدره: په اول زور او دوهم ساکن د زرو کڅوړه (برهان) بلوټ: په ډېره اسماعیل خان ضلع کې د یوه کلي نوم دی، چې ښايي د غه مسری به په ډنګر پېر پورې (د ښود شيخکو) اړه لري، او سدره: هغه شکرانه ده چې پیر یا بل چا ته یې کال په کال ور کوي. په سدري تلل: د دغې کالنۍ شکرانې لپاره په کورو ګرځېدل دي.

(۳۷۶) پیرچې به خوک په مریدي نیوه، نو به یې خولۍ او د خپلې طریقې د تېرو پېرانو یوه شجره ور کوله، چې چا له چا څخه دغه طریقه زده کړې او را نقل کړې ده؟ دغه نوموونه به دوني (شجرې) په توګه کښل کېده.

(٣٧٧) د روښان مريد به وران شو په يقين کې
سل فتنې به يې پيدا کړلې په دين کې

(٣٧٨) درويزه د ناکشيسينو (؟) دين برباد کړو
خارجي يې يوسفزي، خای په ځای کړو

---

(٣٧٧) ار: د درويشان مريد به وران شه په تعين کې؟ مر: درويشان مريد به وران شه په يقين کې؟ په دواړو ډولو دلته درويشان د درويش جمع سمه معنا نه لري، ځکه چې د درويزه او روښان او نورو پيرانو بيان دی، ز ه درويشان (دروښان) گڼم او سمونه يې کوم.

(٣٧٨) ناکشوسينو (؟) دا کلمه په (ار، مر) او خطي نسخو کې کټ مټ دا سې ده چې هيڅ معنا نلري. په دې بيتو کې د خوشحال خان شکوه داده: چې اخو ند درويزه په لږ علم، ځان غټ او پيشوا جوړ کړی دی. او لکه خارجيان د اهل بيت طرفداري نه کوي، او پر يزيد لعنت نه وايي تاسې د خارجي مذهب لنډه قصه د ٣٦٥ بيت په پاڼوړ کې واوسته. په لرغوني افغانستان (خراسان) کې چې حمزه بن آذرك خارجي په ١٧٩ ق کال خروج وکړ نو له ده سره ځينې خارجيان د جنگو پرېگر ولاړ وو. او ځينې خارجيان پر ګلېو او انېو ناست خلك وو، چې دوی ته يې «خارجي قعدي» وايل (وگوری د گرديزي زين الاخبار ١٣١) دغه خلك خو په عقيده کې خارجي وو. مگر تش لاسي يې وسلې خواري کښان او دهقانان وو. چې راولاړشوي او ياغي خلك نه وو. زما پر خيال په دلته دغه نو لوستاي کلمه پښتو (نا+ کښېنستو) وي. چې د هغه عربي قعدي = کښېنستو ځخه په پوه پښتو تعبير وي، د کښېناستل يعنې قعود له ريښې ځخه. ځکه چې دغه ناست او قعدي کلي وال خلك د سني او شيعي حکومتو مطيع او اېل رعيت وو. نو دوی به د خارجي توب عقايد نه ښکاره کول او په غوښتول به يې لکه نور پرسيدان ولاړ خارجيان، خپل عقايد په توره او زور پر نورو نه ور*

* کوترمول. د لته خوشحال اخوند درویزه لکه یوولاړ خارجي یعنې «نا کښېناستی» معرفي کوي. چې لکه ناست او قعدي خارجي غوندې نرم او خاموش نه دی. دد غې نالوستلې کلمې اړاوه زما توجه د تاریخ په ونا کې داسې ده. که څوك تر دې بله معنې توجه لري او د سیاق او سباق سره ترديې سمه وي، د اورېدو اووړ به وي د لته داهم سمه هروی. چې د قاعد (ناست = کښېناستی) کلمه په قرآن عظیم کې د مجاهد په مقابل کې څوځو واره راغلې ده (سوره النساء ۹۵) چې دطبري د تفسیر په فارسي ترجمه (۳۲۲،۳ دتهران چاپ) او د کابل چاپ د شیخ الهند د اردو تفسیر په فارسي ترجمه (۳۳۵،۱) کې یې معنا نشستگان یا نشیننده گان ده. پردېدان ولاړ و جنګي خارجیانو به په دغه آیت: و فضل الله المجاهدین علی القاعدین اجرا عظیما (النساء ۹۵) تمسك کاوه او ناست کلمې ال به یې «قاعدین یا قعدي) ګڼل چې د مجاهدینو سره سم نه وو. لا یستوي القاعدون من المؤمنین غیر اولی الضرر و المجاهدون فی سبیل الله (النساء ـ ۹۵). له دې ځایه به له عربي «قاعد» څخه په پښتو کې هم د کښېناستي او نا ـ کښېناستي اصطلاح را پیدا شوې وي.



(٣٧٩) عام عالم قرآن حدیث په ستر گوو ویني
لا په نورو کو څو گرزي خاوري پیني

(٣٨٠) عام وگړي په معنا لکه دواب دي
په دوا بو کې دگدو په حساب دي

(٣٨١) چې یوه گډه روانه شي د ورا ندې
هغه نورې گډې تله ور پسې کاندې

(٣٨٢) حقیقت د هر ا یله ، دنادان نه دی
چې د خدا ی بانده پېرزوی ، د هغه دی

(٣٨٣) څوك په پیر او په مرشد څه لره و یاري؟
خپل مراد دې همگې له علمه غواړي

(٣٨٤) شکر داچې په داوقت ،عالمان دېردي
مدعي شیخان که هم ترشماره تېردي

(٣٨٥) خدا ی د ې ما، د مدعي شیخا نو ژغوري
تل د ما وي عا لمان دستر گو تو ري

(٣٨٦) هر عالم چې رباني دی ، تر ې ځار یوم
نفسا نې و ته غلیم څوند ې ښکار یوم

(٣٧٩) پینل کېه کول ، محدوشي په یوه پلا خولي ته اچول اوا پیدل .
(٣٨٠) گډ ؟ دکاف په زوره کې . ترپسه ، مؤنث یې گډه ( جمع ) گډې.
(٣٨٢) یعنې حقیقت د هر نا بوه په نصیب نه وي. پر چا چې د خدا ی پېرزو وي .
د هغه په برخه وي.

(٣٨٥) دستر گو توري = د ستر گو تو ر . دجمع موء نث په دول راوړل به
د شعري ضرورت له پلوه وي .

(۳۸۷) چې په علم، عمل جوړ دي ربانی دي
بې عمله علم، واړه شیطاني دي

(۳۸۸) نیم ملا، بلا د دین او د ایمان دی
نیم طبیب خطر د تن دی، هم د ځان دی

(۳۸۹) مدعي ملا که ډېر علم حاصل کا
دی چې علم په دنیا پلوري، باطل کا

(۳۹۰) چې په زړه کې یې ذره د دنیا عشق دی
د درویش دروېشي نشته، واړه فسق دی

(۳۹۱) یو سفر په یې ماره کړه له سیده
ملنګان یې وشړل واړه له ضده

(پای)

---

(۳۸۹) باطل کا: یعنې باطل کا راوناوړه چاره کوي.

(۳۹۱) د لته له سیده مراد هغه شاه عیسی دی. چې د مخه یې نوم په ۳۵۲—۳۵۸ بیتو کې یاد شو.

مسوات نامې سمو نه اوسمړ نه اوخرګند وزه (تصحیح، تحقیق، تحشیه) د کابل په جمال مېنه کې د ۱۳۵۸ هـ د ثور په لومړۍ ورځ د افغانستان د علومو د اکاډمۍ لهاره پای ته ورسېده (حبیبي)




# دمتن سمون لیك

زموږ د هڅوسره سره د کتاب په چاپ کې دغه تیروتنې شوې دي .

ګران او مهربان لوستونکي د ې مخکې ترلو ستلو لطفاً هغه سمې کړي .

# SWAT NAMA

by

**Khushal Khan Khatak**

**Published by Zeray Weekly**

**Academy of Sciences of Afghanistan**

دچاپ شمېر: ۱۰۰۰ ټوکه

دولتی مطبعه